الله اکبر والعزة الله

# دمجاهد کتاب



لیکوال :ابو ادریس شامل بساییف دقفقاز دمجاهدینو امیر

ژباړن :عاصم عندلیب



الله اکبر والعزة لله

# د مجاهد کتاب

لیکوال : ابو ادریس شامل بساییف د قفقاز د مجاهدینو امیر

ژباړن : عاصم عندلیب








**د کتاب ځانګړتیاوې:**

د کتاب نوم: د مجاهد کتاب

لیکوال: شهید ابو ادریس شامل بسايیف

ژباړن: عاصم عندلیب

خپروونکی: توره بوړه فرهنګي اداره

چاپ کال: ۱۳۹۱

چاپ شمېر: ۱۰۰۰ ټوکه

د ادارې ویبپاڼې: www.khurasan.info

www.toorabora.net

## ډالۍ

د توره بوره کفر ځپونکي او نه ایلېدونکي سنګر مؤسس، د جهاد قاید او ستر مجاهد مرحوم مولوي محمد یونس "خالص " رحمة الله علیه ته.
شهید حافظ صفي الله "مزمل " ته چې یادونه یې د جهاد ولولې تاندې ساتي.
د افغانستان سپېڅلو شهیدانو او باتورو مجاهدینو ته.
شهید شامل بسابیف ته چې د سرو روسانو پر مخ یې لا د کلکو کلکو څپېړو تغمې ولاړې دي.

خپل دغه کوښښ ډالۍ کوم

عاصم عندلیب



## د خپرندویه ادارې یادښت

د مجاهد کتاب د مجاهدینو د فکري روزنې لپاره د یوه مرشد کتاب حیثیت لري... د مجاهد کتاب د یوه جهادي او فکري مشر، شهید ابو ادریس شامل بسابیف رحمه الله لیکنه ده. هغه تجربې او خاطرې دي... د هغه داسې تجربې او خاطرې، چې سیده له قرآن او سنته استنباط دي... د اسلام د دوو مقدسو مصدرونو په رڼا منورې دي. شهید شامل په ډېره خوږه لهجه له خپلو مجاهدینو ورونو سره غږېږي، داسې چې مجاهد په کې د یوه ستر اتل په حیث یادوي، د مېړانې ټول خویونه ور په زړه کوي، مجاهد د یوه کامل انسان اخلاقو ته رابولي... دا کتاب چې ستاسې په لاس کې دی، زموږ یوازینۍ هیله همدا ده، چې د جهادي روحیې پر بنسټ ولوستل شي او ملغلرې ترې په خورا زیرکتیا تر لاسه شي !

توره بوره فرهنګي اداره


لړلیک

# د لسو کلن مقاومت شهکار اثر

دا تشه موږ له ډېرو کلونو راهیسې لرو، چې د مجاهد فکري او سلوکي روزنه څنګه وشي؟ موږ سره له دې چې د مقاومتونو مسلسل اوږد تاریخ لرو او په هر مقاومت کې مو یاد او اتل شخصیتونه شته، خو نه زموږ خلکو داسې څه مدون راپرېښې چې په سیمه کې اقلا د مجاهد دلارې مشال وي او نه مو په نږدې سیمه کې داسې څوک موندل کیږي، چې په ار جهادي طبیعت برابر څه ولیکي.
عموما دا خبره سمه ده، چې قرآن او سنت زموږ د تیارو ډیوې دي، خو د هغو ځانګړو شرائطو، احوالو او چاپېریالونو په اړه د مبتکر عقل کمی لا بله ستونزه ده، چې موږ یې له جهادي طبیعت سره سره د رویې تشخیص نه شو کولای. موږ که د جهادي طبیعت پر بنسټ دښمن سره د اوږدې مودې لپاره د ډغرې حوصله لرو، خو دا به هم منو چې د ځانګړې اسلامي جهادي طرز نشتوالی هم زموږ په وړاندې هغه خنډونه پیدا کوي، چې تېربدل ترې د جهادي کارنامو په بربادۍ تمامیږي.
الحمدلله موږ تل مېړانه کړې، خو تل مو خپل افتخارات د بل اوږو ته وراچولي، څه زموږ د جهادي فکر د پراګندګۍ اغېز دی او څه د لستوڼي ماران دومره بیدار دي، چې د چیچنې هیڅ فرصت له لاسه نه ورکوي. دا خبره هم ډېره د تامل وړ ده، چې ولې هر کار کې زموږ ذاتي اغېز ډېر ښکاره وي؟ موږ که له یوې خوا داسې مخاطرو ته د ځان د ورغورځولو استعداد لرو، بل خوا مو دا هم د فکر وړ وي، چې دا اتلواله ولې خپلې پایلې نه لري؟



ځواب شاید همدا وي، چې د اسلام په نامه مبارزه په اسلامي طبیعت پرمخ ځي او متوقع پایلې لري. یو وخت د حق او باطل تر منځ د ټکر خبره وي، زه هم له خپل طبیعته مجبور یم او د حق په پلوۍ کې ولاړ یم، خو ذات مې تر بل هر اصله معتبر وي، دلته جګړه کې حق خپل زور معلوموي او بالآخره پایله د حق په بري راوځي، دا د باطل پرزېدنه طبعي ده، زما عمل په کې یوازې د همدې مرحلې امتحان دی، چې شاید د یو ډول ګډون تر بریده کامیابېده غواړي، خو کله چې د حق د بري پر مهال زما عمل د جګړې ار ممثل شي، دلته زما د مبارزې جوهر معلومیږي. که د خپلې مبارزې په طبیعت برابر وم، شاید څه لاس ته راوړم، خو که د مبارزې د طبیعت پر ځای په کې زما ذاتي طبیعت ډېر دخیل وي، نو بې له دې چې مبارزه مې په شرم تمامه شي، نورې هیڅ پایلې نه شي لرلای.
موږ هر کله د حق او باطل تر منځ د ټکر لومړنۍ صحنه ځان پسې تړلې، چې هیڅکله هم زموږ نه وي، بلکې دا د حق خپل زور دی، چې له باطل سره په کشمکش کې ځان ښکاروي، خو بیا چې خبره زموږ اوږو ته رالویږي، نو هغه صلاحیتونه موږ نه دي لرلي، چې د دې ټکر د دوهمې او اصل صحنې تمثیل وکړو !!
دا دی موږ بیا په یوه مقاومت لګیا یو او بیا هم د دې ټکر لومړۍ صحنه ځان پسې تړو. باطل مات دی، له هغې ورځې چې باطل په حق یرغل کړی، همغه یې د ماتې پیلامه ده، چې له مختلفو پړاوونو تېربږي، خو هغه پړاو چې زموږ د صلاحیتونو اصل امتحان په کې اخیستل کیږي، لا پاتې دی او موږ وینو چې هیڅ کار ورته نه دی شوی.
"د مجاهد کتاب" د دې کشمکش د لومړۍ مرحلې د تېرولو درسونه دي. د دې کتاب کې داسې ملغلرې پېیل شوي، چې یوازې ګوهریان به یې په قدر پوهیږي او د راتلونکو تلوسه به یې لري. شهید شامل رحمه الله خپل مجاهد

سره په ډېره صميمانه رويه خبرې کوي او هره خبره له زړه کوي. ځينې خبرې ډېرې ښکاره دي، خو ځينې نورې بيا په ډېرو پوښونو کې تاوې دي. د دې کتاب خبرې د مجاهد زړه او عقل صيقل کوي، د يوه مهذب مبارز خويونه ورښايي او د حق و باطل تر منځ د ټکر د نورو مراحلو د انتخاب فکر او جرأت ورکوي. د دې مراحلو د طی کولو لار ورښايي او د سپېڅلو ارمانونو د تحقق زېري ورکوي.

د دې کتاب افکار په ار کې د شهيد شامل رحمه الله خاطرات دي، چې د ده د جوهري شخصيت او مبتکر عقل له امله ترې داسې مدونه جوړه شوې. د يو چا د ژوند خاطرات چې په دا ډول افکارو بدلېدای شي، همدا د يوه ځانګړي انسان نښه وي...هغه خپلې هرې خاطرې ته يو ايت او حديث په استدلال کې لري او همدې خو دې افکارو ته جلا ځای ورکړی.

شهيد شامل د سيمې او نړۍ په سويه منل شوی قائد دی.هو قائد همداسې وي، چې هم د جګړې مېړنی، هم د خبرې او هم د قلم. دا کتاب بويه چې په لومړي ځل زموږ په صحنه کې شهيد شامل په دې بڼه راڅرګندوي. موږ شهيد شامل ته په پښتو جهادي ادب کې د قدم ايښودو هرکلی کوو.

ښاغلي عاصم عندليب ته مبارکي وايو چې د روان لس کلن مقاومت د شهکار ژباړې وياړ يې په برخه دی. ښاغلي "د مجاهد کتاب" په ډېره خوږه او روانه پښتو زموږ مجاهدينو ته ژباړلی، نور نو مجاهد ته بويه چې څنګه ترې ملغلرې راټولوي!

جمال الدين اديب

د "توره بوره" جهادي مجلې مسئول مدير

۱-۸-۲۰۱۲



# د سر خبرې

د اسلام د سپېڅلي دين شغلې په ام القرى مكة المكرمة کې د سپېڅلي پېغمبر حضرت محمد (صلى الله عليه وسلم) د بعثت په لومړيو دوه لسيزو کې تر حبشې، روم او فارس پورې خپرې شوې او بيا دغه وروستی الهي دين د ځمکې پر مخ او سېدونکي هر انسان پورې ورسېد، داسې يوه سيمه پاتې نه شوه، چې هلته انسان وي، مګر دغه سپېڅلی دين ور ورسېد، رسول الله (صلى الله عليه وسلم) د رب متعال (ﷻ) له خوا ورسپارلې امانت اداء او له دې فاني نړۍ وکوچېد.

د اسلام د څوارلس سوه کلن تاريخ هر پېر شاهدي ورکوي، چې په هر زمان او مکان کې د رسول الله (صلى الله عليه وسلم) له امته داسې خلک پيدا شوي، چې د الله (ﷻ) له دينه يې په خپل سر او مال دفاع کړې، په دې لار کې يې هر څه قرباني کړي او د اسلام په خپرولو کې يې په پراخه زړه، پوره اخلاص او بشپړې ايماني جذبې سره جهاد کړی، چې ذروة سنام الاسلام بلل کيږي.

قفقاز هم د اسلامي نړۍ د اتلانو زېږوونکې برخه ده، د اسلامي نړۍ په دغه برخه کې تاريخ جوړوونکي اسلامي شخصيتونه زېږېدلي، د قفقاز په کنګل کنګل غرونو کې امام نجم الدين خپل ژوند د دين په دعوت کې تېر کړ، امام

منصور او حمزه بیک په همدې سیمه کې د اسلام بیرغ هسک وساته او امام شامل د ژوند ډېره برخه د روسانو پرضد په سنګر او جهاد کې تېره کړه.

د شلمې میلادي پېړۍ په نیمایي کې د قفقاز مسلمانان د روسي امپراتور جوزف ستالن له خوا ډول ډول وکړول شول، خو د همدې پېړۍ په پای کې د یادې سیمې مسلمانانو یو ځل بیا د جهاد او خپلواکۍ بیرغ پورته کړ، د جهاد نه پرې کېدونکې سلسله پسې اوږده او د بیا لپاره د سپېڅلې مبارزې سنګر ګرم شو.

دغه مهال یو ځل بیا قفقاز اسلامي نړۍ ته تلپاتې اتلان ورکړل، چې له دې جملې یو هم شهید عبد الله شامل ابو ادریس بسایيف دی.

امیر عبدالله شامل ابو ادریس بسایيف په ۱۹۵٦م کال کې د چیچنیا د (دشنې) په کلي کې زېږېدلی، په خپله سیمه کې یې زده کړې کړې او له دې کبله چې د هغه د ځوانۍ په لومړیو شپو ورځو کې چیچنیا د شوروي اتحاد برخه وه، شهید شامل بسایيف هم په شوروي پوځ کې دنده تر سره کړې.

نوموړي په یوه اسلامي کورنۍ کې دنیا ته سترګې غړولې او له آره یو مجاهد و، نیکه یې په ۱۹۱۷م کال کې په شمالي قفقاز کې د انقلابي پاڅون د مشرانو او د امام شامل له نږدې ملګرو وو، چې په همدې لار کې د روسانو له خوا په شهادت ورسېد.

دغه د ارام او غلي طبیعت څښتن د ځوانۍ په عمر کې یوه ناپېژندل شوې څېره وه، خو کله چې په ۱۹۹۱م کال کې شهید جنرال جوهر دودایيف د چیچنیا د ازادۍ غږ پورته کړ، نو شامل هم د خپلواکۍ د لښکر د لومړي صف سړی شو او خپل نوم یې د تاریخ په پاڼو کې په زرینو تورو نقش کړ.

شهید شامل په چیچنیا کې د خپلواکۍ د اسلامي خوځښت او د یو اسلامي دولت د قیام د هلو ځلو له پیله وروسته داسې کارنامې تر سره کړې، چې د تاریخ په حافظه کې د رڼو ستورو حیثیت لري، نوموړی د چیچنیایانو لپاره



اتل او د روسانو لپاره یو نه اېلېدونکی مسلمان قوماندان دی، هغه ځوک دی چې روسانو ته یې د هغوی د سرونو په کاسو کې اوبه ورکړې او د خپل سر په بدله یې له خپل دین او هېواده دفاع وکړه. شامل بسایيف یو داسې نوم دی چې اسلامي نړۍ پرې ویاړي او کړنې یې د مسلمانانو لپاره د لارې د مشال حیثیت لري.

شهید شامل بسایيف د چیچنیا د جهاد د رمز په توګه پېژندل کېږي، او س هم د ډېرو ځوانانو په زړونو کې د جهاد د روح پو کوونکی او د روحاني ځواک پنځوونکی ګڼل کېږي، شهید شامل په نظامي ډګر کې د یو افسانوي رول څښتن دی، خو دا حقیقت دی چې پر چیچنیا تپل شوې ناروا جګړه یې په خپلو عسکري ورتیاوو د روسانو تر ښارونو، مرکزونو، کلو، کوڅو، کورونو او د مسکو تر واټونو پورې ور ورسوله او د کرېملین په برجونو یې زلزله راوسته.

نوموړی د قربانۍ او سربښندنې یوه بېلګه وه، د ټولې لپاره قوماندان، د جګړې په ډګر کې سرتېری، یو ښه مبارز، غوره روزونکی بلکې په هر ډګر کې د سر سړی و، په ۲۰۰۰م کال کې د چیچنیا د پلازمینې ګروزنې (جوهر) د محاصرې د ماتولو پر مهال د روسي ځواکونو له خوا د مجاهدینو د مخنیوي لپاره پر خښو کړای شوو ماینونو پلی ور روان و، چې همدا مهال پرې یو ماین وچاودېد او هغه یې له یوې پښې محروم کړ.

په چیچنیا کې د اسلامي حکومت له ختمولو وروسته هم د ګوډ شامل جهادي ولولې مړاوې نه شوې، بلکې د هغه مبارز طبیعت نور هم تاند شو او د شهادت تر وخته یې په وروستۍ شېبه کلنه مبارزه کې د روسي ښکېلاک پرضد داسې عسکري عملیات تر سره کړل، چې ستر ستر پوځي جنرالان یې ګوته په غاښ کړل، د ټولې نړۍ مخ ور واوښت، بالاخره نړیوالو کفري ځواکونو د اسلام او مسلمانانو پرضد د یوویشتمې پېړۍ له تر ټولو ناوړه حربې کار واخیست او نړیوال استبداد هغه د یو "تروریست" په توګه اعلان کړ.

دې هر څه د شهید جنرال عبد الله شامل ابو ادریس بساییف د جهادي یون مخه ډپ نه کړه، پر مخ روان و، په توده وینه د خپل دین او خاورې د همېشني دښمن پر ضد جنګېده، د نړۍ مسلمانانو ته يې د جهاد د بریا پیغامونه لېږل او په هره مرکه کې يې اسلامي امت د یو والي په لور رابله.

شامل د یو پرتمین او سرلوړي جهادي ژوند له تېرولو وروسته د دوه زره او شپږم میلادي کال د جولای د میاشتې په لسمه نېټه د شهادت لوړ معراج ته ورسید او تلپاتې ژوندی شو.

هغه په دې پاکه لار یوازې د خپل مال او ځان قرباني ورنه کړه، بلکې د کورنۍ ډېری غړې يې هم په دې لار کې له لاسه ورکړي دي، لکه چې د نوموړي پلار په ۲۰۰۲م کال کې له روسي پوځ سره د جګړې پر مهال په شهادت رسېدلی، یو ورور يې په زهرو سره په شهادت رسول شوی او یو بل ورور يې په ۲۰۰۰م کال کې له روسانو سره په مخامخ جګړه کې سخت ټپي شو.

د شهید بساییف یوه مېرمن، یو زوی، خور او د خور اوه اولادونه په ۱۹۹۵م کال کې هغه مهال په شهادت ورسېدل چې روسي هوايي ځواک د هغه کور بمبار کړ.

ستاسې په لاس کې (د مجاهد کتاب) د همدې اتل شهید د تجربو غورچاڼ او د جهادي ژوند پر مهال تر لاسه کړي علم نتیجه ده، دغه کتاب د سپېڅلي کتاب قرآن کریم په لسګونو مبارکو ایتونو او د حضرت نبي کریم (ﷺ) په مبارکو احادیثو سینګار شوی دی، د مجاهد کتاب د یو رښتیني مجاهد او سرښندونکي مبارز د ژوند په هر اړخ خبرې کړي، هغه يې خپلو مسئولیتونو ته متوجه کړی او لارښوونې يې ورته کړي دي.

که د دې کتاب د چاپ له کبله د افغانستان د اسلامي امارت د "توره بوره جهادي محاذ له فرهنګي څانګې" مننه او کور ودانی ونه شي بې انصافي به وي، د "توره بوره جهادي محاذ د فرهنګي څانګې" له مسئولینو او مشرتابه د



زړه له کومې مننه کوم، او د دې نېک عمل په مقابل کې ورته له رب متعال څخه د جنت الفردوس دعا کوم.

له الله جل جلاله دعا کوم چې د قیامت په ستره او هیبتناکه ورځ د هغه ورڼو د نېکۍ تله درنده کړي چې د دې کتاب په تصحیح کې يې مرسته کړې او وخت په وخت يې راته لازمې لارښوونې کړي دي، همدوی دي چې کتاب يې د چاپ تر درشل ورسولو.

د شهید شامل د کتاب په اړه نظر پر تاسې، خو د هغه په څېر زه هم د خپل دې ناچیز عمل په صله کې یوازې او یوازې د الله(ﷻ) د رضا غوښتنه کوم، له لوستونکو د دعا هیله من یم او د پاک رب(ﷻ) له درباره غواړم چې د خپلې حقې لارې د شهیدانو د کاروان همسفر مې کړي. آمین

عاصم عندلیب

۳۱ وری ۱۳۹۰

# د ليکوال سريزه

بسم الله الرحمن الرحيم

الحمد لله رب العالمين الذي خلقنا مسلمين و بارکنا بالجهاد على طريقه المستقيم و الصلاة والسلام على النبي محمد و على آله و أصحابه و من تبعهم إلى يوم الدين.

و بعد:

له هر هغه څه برات اعلانوم، چې د قرآن کريم او د نبي کريم (صلى الله عليه وسلم) له سنتو مخالف مې ليکلي وي او له الله تعالى(ﷻ) سوال کوم چې زما د ناپوهۍ له کبله زما تېروتنه را وبښي.

مجاهد د جګړې د ډګر جنګيالی وي، اې د حق د لارې مجاهده ! الله تعالى(ﷻ) دې پر تا برکت کړي چې د روسانو د ډول ډول ناوړه کيسو او داستانونو سره سره غوا ړې خپلواک و اوسې او ازاد ژوند وکړې.

د تېر کال د مارچ د مياشتې په وروستيو ورځو شپو کې مې دوه اونۍ فارغ وخت درلود ، پر دې مهال مې د کمپيوټر له لارې د (Warrior of Light د رڼا جنګيالی) په نوم د (Paulo Coelho پاولو کويلو ) له خوا د کتاب په شکل د جنګياليو لپاره ليکل شوی لارښود تر لاسه کړ.

کوښښ مې وکړ چې له دې کتاب څخه د مجاهدينو لپاره څه ګټور توکي را ونغاړم، له همدې امله مې د دې کتاب ډېره برخه بيا وليکله، ځينې برخې مې ترې ليرې کړې او دغه نوې ليکنه مې په ايتونو ، احاديثو او د صحابه کرامو د ژوند په کيسو ځواکمنه او غني کړه.

دا ليکنه مې يوازې د الله تعالى(ﷻ) د رحمت په تمه او هيله د هغې ګټې په بدل کې کړې، چې مجاهدين يې ځنې د خپل ځان او جهاد لپاره پورته کوي.

و العزة لله و الله أکبر مارچ ٢٠٠٤



# جهاد

الله(ﷻ) په خپل سپېڅلي کتاب کې فرمايي:

﴿كُتِبَ عَلَيْكُمُ الْقِتَالُ وَهُوَ كُرْهٌ لَكُمْ وَعَسَى أَنْ تَكْرَهُوا شَيْئًا وَهُوَ خَيْرٌ لَكُمْ وَعَسَى أَنْ تُحِبُّوا شَيْئًا وَهُوَ شَرٌّ لَكُمْ وَاللَّهُ يَعْلَمُ وَأَنْتُمْ لَا تَعْلَمُونَ﴾[1]

ژباړه :(پر تاسې جګړه فرض کړای شوې (د کفارو پر ضد ) حال دا چې تاسې يې بده ګڼئ، او ډېر کرت به تاسې يو څه بد ګڼئ، خو هغه به ستاسې لپاره ښه وي، او يو څه به تاسې محبوب ګڼئ، خو هغه به ستاسې لپاره شر وي، الله(ﷻ) پوهېږي او تاسې نه پوهېږئ).

جهاد د الله تعالى(ﷻ)د کلمې د لوړوالي په نيت د الله(ﷻ) په لار کې د کفارو پر ضد په جګړه کې د قوت او ځواک استعمال ته ويل کيږي، جهاد يا په جګړه کې په مستقيم ګډون، يا په مالي مرسته، يا د ټپيانو په درملنه، يا د خوراک څښاک په تمويل او يا په فکر او نظريه تر سره کيږي.

الله تعالى(ﷻ) فرمايي:

﴿إِنَّ اللَّهَ اشْتَرَى مِنَ الْمُؤْمِنِينَ أَنْفُسَهُمْ وَأَمْوَالَهُمْ بِأَنَّ لَهُمُ الْجَنَّةَ يُقَاتِلُونَ فِي سَبِيلِ اللَّهِ فَيَقْتُلُونَ وَيُقْتَلُونَ وَعْدًا عَلَيْهِ حَقًّا فِي التَّوْرَاةِ وَالْإِنْجِيلِ وَالْقُرْآنِ وَمَنْ أَوْفَى بِعَهْدِهِ مِنَ اللَّهِ فَاسْتَبْشِرُوا بِبَيْعِكُمُ الَّذِي بَايَعْتُمْ بِهِ وَذَلِكَ هُوَ الْفَوْزُ الْعَظِيمُ﴾[2]

1 - البقرة:٢١٦

2 - التوبة:١١١

ژباړه: (یقیناً الله(ﷻ) له مؤمنانو څخه د دوی ځانونه او مالونه په دې پېرلي، چې جنت به ورکوي. د الله(ﷻ) په لار کې به جګړه کوي، یا به دښمن وژني یا به دوی وژل کیږي. دا حقه او ثابته وعده ده په توراة، انجیل او قرآن کې او له الله(ﷻ) پرته څوک ډېر په وعده ټینګ دی؟ تاسې چې کومه سودا کړې، په هغې زېرې واخلئ او دا ډېره لویه سوبه ده).

رسول الله(صل الله علیه وسلم)فرمایلي دي:

﴿عن أنس بن مالك رضي الله عنه قال قال رسول الله(صل الله علىه وسلم)(لَغَدْوَةٌ فِي سَبِيلِ اللَّهِ أَوْ رَوْحَةٌ خَيْرٌ مِنَ الدُّنْيَا وَمَا فِيهَا﴾[1]

ژباړه : (انس بن مالک(رضی الله عنه) فرمایي چې رسول الله(صل الله علیه وسلم)فرمایلي دي: د الله(ﷻ) په لار کې یوځل د سبا په وخت کې او یا یو ځل د بېګا په وخت کې وتل، له دنیا او هغه څه چې په دنیا کې دي غوره دي).

1 - صحیح البخاري.



# مجاهد

مجاهد هغه څوک دی، چې د الله(ﷻ) د لارې جهاد کې ځاني یا مالي فعاله ونډه لري، مجاهد هغه څوک دی چې کولای شي د دنیاوي ژوند په مقصد پوه شي او د خپلې عقیدې په لار کې تر وروستي بریده وجنګیږي.

مجاهد په پوره شوق سره لېوال وي، څو د جهاد په مقابل کې- چې د مسلمان یو مهم فرض شمېرل کیږي- له الله تعالی(ﷻ) اجر او ثواب تر لاسه کړي.

الله تعالی(ﷻ) فرمایي:

﴿انْفِرُوا خِفَافًا وَثِقَالًا وَجَاهِدُوا بِأَمْوَالِكُمْ وَأَنْفُسِكُمْ فِي سَبِيلِ اللَّهِ ذَلِكُمْ خَيْرٌ لَكُمْ إِنْ كُنْتُمْ تَعْلَمُونَ﴾[1]

ژباړه: (جګړې ته ووځئ، که اساني وه درباندې او که سختي (بډای وئ او که فقیران، اولاد مو ډېر وو او که لږ، ځوانان وئ او که سپین ږیري) د الله(ﷻ) په لار کې جهاد وکړئ، دا تاسې لپاره غوره ده که پوهېږئ).

پاک نبي (صل الله علیه وسلم)فرمایلي دي:

﴿عَنْ عَمْرِو بْنِ مَالِكٍ أَنَّ فَضَالَةَ بْنَ عُبَيْدٍ حَدَّثَهُ عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ قَالَ فِي حَجَّةِ الْوَدَاعِ سَأُخْبِرُكُمْ مَنِ الْمُسْلِمُ مَنْ سَلِمَ الْمُسْلِمُونَ مِنْ لِسَانِهِ وَيَدِهِ وَالْمُؤْمِنُ مَنْ أَمِنَهُ النَّاسُ عَلَى أَمْوَالِهِمْ وَأَنْفُسِهِمْ وَالْمُهَاجِرُ مَنْ هَجَرَ الْخَطَايَا وَالذُّنُوبَ وَالْمُجَاهِدُ مَنْ جَاهَدَ نَفْسَهُ وَهَوَاهُ فِي طَاعَةِ اللَّهِ﴾[2]

ژباړه: (عمرو بن مالک له فضالة بن عبید(رضی الله عنه) څخه روایت کوي چې رسول الله(ﷺ) د حجة الوداع پر مهال وفرمایل: زه به تاسې پوه کړم چې مسلمان

1 - التوبة:٤١

2 - احمد او جامع الترمذي

ځوک دی، هغه څوک دی چې نور مسلمانان یې د ژبې او لاس له ضرره خوندي وي او مؤمن هغه څوک دی چې خلکو د خپلو مالونو او ځانونو په لړ کې امانتدار ګڼلی وي او مهاجر هغه څوک دی چې له تېروتنو او ګناهونو لرې شي او مجاهد هغه څوک دی چې د الله(ﷻ) په طاعت کې له خپل نفس او خواهشاتو سره جهاد او مبارزه وکړي).

مجاهد موحد وي، له شرکه ځان ژغوري، د حق پلوی وي، له باطل څنې ځان ژغوري، عدل ته ژمن او له ظلم څنې ځان ژغوري، ربښتیا وایي او خیانت نه کوي، مخلص وي، له تګۍ او درغلۍ ځان ساتي، د خپلې مور او پلار فرمانبرداري کوي او له نافرمانۍ یې ځان ژغوري، صله رحمي ساتي، پرې کوي یې نه، له ګاونډیانو سره ښه رویه کوي او هغوی ته زیان نه رسوي، د ښو اخلاقو خپلوونکی او له بدو اخلاقو څنې ځان لرې ساتي، مجاهد د موقت او همېشني تر منځ توپیر کولای شي.

مجاهد د کوچنیانو له سترګو درس اخلي - هغه پوهېږي چې کوچنیان نړۍ ته په غمجنو سترګو نه ګوري- ځکه خو کله چې وغواړي وپوهېږي ایا د هغه په خوا کې راټول شوي خلک باوري او وفادار دي که نه؟ نو کوښښ کوي چې هغوی ته د کوچنیانو په نظر وګوري.

مجاهد هېڅکله هم له حاضر دم او راتلونکو پېړیو خپل نظر نه غورځوي، پام یې وي چې د نن او سبا مزي ځومره کلک تړلي او وخت د دې مزو په وړاندې څومره کمزوری او ناتوانه دی.

ډېر کرته یو مجاهد له جګړې وړاندې ډار محسوس کړي او یا د سستۍ او لټۍ ښکار شوی وي، هر مجاهد په تېرو وختونو کې درواغ ویلو او خیانت کولو ته اړ شوی دی، هر مجاهد په خپله لار کې له سختیو او ستونزو سره مخ شوی دی، هر مجاهد په خوشې خبرو ربړول شوی دی، هر مجاهد د سلبیاتو تراغېز لاندې راغلی او یا یې احساس کړی، چې هېڅکله هم نه شي مجاهد



کېدای، ډېر کرته یو مجاهد اړ شوی چې په خپلو دیني دندو کې ناغېړي وکړي. هر مجاهد د خپل ژوند په اوږدو کې خامخا اړ شوی وي، وو ایي (هو) په داسې حال کې چې هغه مهال به (نه) ویل سم وو او هر مجاهد د یو نږدې دوست پر وړاندې بدو او یا تېروتنې ته مجبور شوی وي.

له همدې امله هغه حق لري چې مجاهد وبلل شي، ځکه چې له دې ټولو ناخوالو سره سره د یو ربښتیني مجاهد او د پخوا په پرتله د یو ښه انسان له کېدو ناهیلی شوی نه دی، چې همدغه جهاد او مبارزه ده.

مجاهد ته د هغه دښمن د شتون احساس شته، چې غواړي ایمان، زړورتیا، ټینګار، اصرار، د پرېکړې توان او صبر یې وازمایي، خو سره له دې ټولو د دښمن پر ضد د هغه جګړه د الله تعالی(ﷻ) په امر د خپلې دندې د تر سره کولو لپاره وي.

# مهرباني

الله تعالی(ﷻ)په قرآنکریم کې فرمایلي:

﴿وَمَا تَفْعَلُوا مِنْ خَيْرٍ فَإِنَّ اللَّهَ بِهِ عَلِيمٌ﴾[1]

ژباړه: (بې شکه الله تعالی(ﷻ) په هغه نېکو عملونو ډېر ښه پوه او عالم دی چې تاسې يې کوئ).

مجاهد بايد مهرباني او زړه سوی ولري، ملايکې به يې په غزا کې د الله(ﷻ)په امر مرسته کوي.

اسماني ځواک هر څه په خپل وړ او لازم ځای کې ږدي، په همدې اساس مجاهد ته هم دا فرصت په لاس ورځي چې هر وخت ښه و اوسيږي.

رسول الله(صل الله عليه وسلم) فرمايلي:

﴿عَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ، قَالَ جَاءَ جِبْرِيلُ عَلَيْهِ السَّلاَمُ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَآلِهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ يَا مُحَمَّدُ عِشْ مَا شِئْتَ فَإِنَّكَ مَيِّتٌ وَأَحْبِبْ مَنْ أَحْبَبْتَ فَإِنَّكَ مُفَارِقُهُ وَاعْمَلْ مَا شِئْتَ فَإِنَّكَ مَجْزِيٌّ بِهِ ثُمَّ قَالَ "يَا مُحَمَّدُ شَرَفُ الْمُؤْمِنِ قِيَامُ اللَّيْلِ وَعِزُّهُ اسْتِغْنَاؤُهُ عَنِ النَّاسِ﴾[2]

په حديث قدسي کې راغلي:

ژباړه : (له سهل بن سعد(رضی الله عنه) څخه روايت دی چې جبرائيل عليه السلام نبي کريم(صل الله عليه وسلم) ته راغی او ورته يې وويل: ای محمده(صل

[1] -البقرة:۲۱۵

[2] -الطبراني، الحاکم ، ابو داؤد ، المستدرک.



الله عليه وسلم) ! څه ډول دې چې خوښه وي ژوند وکړه، ځکه چې ته وفات کېدونکی يې، څوک چې دې خوښ وي ورسره مينه وکړه، ځکه چې ته ورڅخه جلا کېدونکی يې، څنګه دې چې خوښه وي هغسې عمل وکړه، ځکه چې تا ته پرې جزا درکول کيږي، بيا يې وفرمايل:

ای محمده(صل الله عليه وسلم) ! د مؤمن شرف او درنښت په قيام الليل (د نيمې شپې لمونځ، تهجد ) کې، او عزت يې له خلکو په بې پروايی کې دی).

کله کله مجاهد ته د داسې يو کار کول شوني شي چې د انسان له توانه بهر وي، نو بيا د الله تعالی په رحمت او مرستې د شکر په نيت هغه ستر ذات ته سر په سجده شي او د هغه حمد او ثنا بيان کړي.

همدا راز مجاهد بايد خپل ملګري هېر نه کړي، ځکه چې هغوی ورسره په يو سنګر او يو ځای خپلې وينې تويې کړي، مجاهد بايد داسې نه وي چې د نورو مرستې وريادې کړای شي، بلکې بايد په خپله د تل لپاره دغه مرستې يادې وساتي او د همدې مرستو په اجر کې ځان شريک کړي.

# زده کړه

مجاهد همېشه زده کړه کوي.
الله تعالی(ﷻ) فرمايي:
**﴿وَقُلْ رَبِّ زِدْنِي عِلْمًا﴾**[1]
ژباړه: (او ووايه "ای محمده(صل الله عليه وسلم) ! " چې ای زما ربه، په علم کې مې زيادت وفرمايه).
مجاهد تل انساني کمال او بشپړتيا ته لېواله وي، پر دښمن د هغه د هر ګوزار شاته ډول ډول حکمتونه او يو فکر وجود لري.
د مجاهد په هر وار کې بايد د قوت تر څنګ هغه تيزي موجوده وي، چې د مجاهدينو له تجربو يې راټوله کړې وي، د مجاهد په هر خوځښت کې د پخوانيو نسلونو د هغو خوځښتونو لپاره درنښت او احترام پروت وي چې موږ ته راپاتې دي.
يو زده کوونکي خپل ښوونکي ته وويل: "کله چې زه خپله لينده راقات کړم، داسې يوه شبېه راشي چې هر څه پکې ځرګند او روښانه وي، که زه چېرته په همدې وخت کې د لينديې مزی خوشې نه کړم، نو عزم او اراده له لاسه ورکوم".
ښوونکي يې ځواب ورکړ: "څو پورې چې ته د غشي د ويشتلو شبېه له ذهن او دماغه ونه باسې، ته د غشي ويشتلو فن نه شې زده کولای، ځکه کېدای شي چې د غشي ويشتل او د هغه وخت له يو بل سره په غير اړينو جذباتو او

1 - طه:١١٤



احساساتو ننښتي وي"[1]
رسول الله(صل الله عليه وسلم)فرمايلي:
**﴿عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ سُئِلَ عَنْ عِلْمٍ فَكَتَمَهُ أَلْجَمَهُ اللَّهُ بِلِجَامٍ مِنْ نَارٍ يَوْمَ الْقِيَامَةِ﴾**[2]
ژباړه: ( له ابو هريرة (رضی الله عنه) روايت دی، چې رسول الله(صل الله عليه وسلم)فرمايلي دي، له چا چې د کوم علم په اړه پوښتنه وشي او هغه يې پټ کړي، الله تعالی(ﷻ)به ورته د قيامت په ورځ د اور قيضه واچوي).
مجاهد خپل درسونه د صحابه کرامو له ژونده تر لاسه کوي، هغه صحابه چې هر قدم او هر خوځښت يې د دښمن د زيان او د مسلمانانو د ګټې لپاره و.
د دې لپاره يو ژوندی مثال د مؤته په غزا کې د جعفر بن ابي طالب(رضی الله عنه) دی، کله چې د جګړې اور ګرم شو او د مجاهدينو قوماندان حضرت زيد بن حارثة(رضی الله عنهما ) په پوره مېړانه په شهادت ورسېد ، حضرت جعفر له خپل اسه ټوپ کړ، پلی شو ، د اس زين يې له دې امله پرې کړ، چې دښمن ترې ګټه پورته نه کړي او په خپلو وزرينو لاسونو يې بيرغ پورته کړ.
مجاهد هڅه او هاند کوي چې وارونه يې د تکميل تر وروستي بريده ورسيږي، هر کله چې له تيکي څخه د وسلې را ايستلو ته اړ شي، نو خامخا يې کاروي، پر يو چيچنيايي خنجر ليکل شوي:"بې اړتيا يې مه راباسه او بې استعماله يې بېرته په تيکي کې مه ننباسه".
مجاهد په خپله وسله خپله لارغوځوي، د کمزوري مرسته پرې کوي، نږدې پېښېدونکی ګواښ پرې دفعه کوي، خو د وسلې خپل هوس وي، وسله نه

1 -يعني جهاد يواځې او يواځې په احساساتو نه کيږي، بلکې يو مجاهد بايد زده کړه هم وکړي او د زده کړې پر مهال له جذباتو کار وانه اخلي.
2 - ابن ماجه ، الترمذي.

خوښوي، چې بې له استعماله دې را وويستل شي.
مجاهد د ګواښ تر اغېز لاندې نه راځي، هغه بريد کوي، دفاع کوي او د اړتيا پر مهال په شاتګ، چې دا ټول د جګړې برخې دي، خو له پخوا د وسلې په اړه غورې وهل د خپل ځواک د ضياع معنا لري، چې تر وخت وړاندې دا ډول غورې له رښتوني جګړې سره اړيکه نه لري.
مجاهد د تل لپاره د خپلې وسلې په اړه محتاط وي، د خپلو ورونو پر وړاندې له وسلې سره لوبې نه کوي، د وسلې هر حرکت او خوځښت ته متوجه وي، ځکه چې وسله د استعمال لپاره جوړه شوې، د خبرو لپاره نه.
مجاهد په هر حال کې د يو نوي شي د زده کړې لپاره چمتو وي.
الله تعالی(ﷻ)فرمايلي:
{إِنَّمَا يَخْشَى اللَّهَ مِنْ عِبَادِهِ الْعُلَمَاءُ إِنَّ اللَّهَ عَزِيزٌ غَفُورٌ}[1]
ژباړه: (بې شکه چې له الله تعالی(ﷻ) عالمان او پوه بنده ګان وېرېږي، بې شکه الله تعالی(ﷻ) ښه غالب او ښه بښونکی دی).

[1] - فاطر:۲۸



# تجربه

رسول الله(صل الله عليه وسلم)فرمايلي دي:
﴿عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ قَالَ لَا يُلْدَغُ الْمُؤْمِنُ مِنْ جُحْرٍ وَاحِدٍ مَرَّتَيْنِ﴾[1]
ژباړه: ( ابو هريرة(رضی الله عنه) له نبي(صل الله عليه وسلم) څخه روايت کوي، چې هغه وفرمايل: مسلمان له يو سوري دوه ځلې نه چيچل کيږي).
هغه تجربه چې له جګړې تر لاسه کيږي د مجاهد روح تقويه کوي.
مجاهد يوازې په خپلو ځانګړيو وړتياوو باور نه کوي، بلکې د دښمن له ځواکه هم ګټه پورته کوي، هغه د جګړې ډګر ته د ځيرکتيا، تجربې او فن په وسله سمبال ننوځي، پر دښمن بريدونه تر سره کوي او ورسره هممهاله هغه تکتيکونه او مهارتونه هم د زېرمې په توګه ساتي، چې تر دې دمخه يې زده کړي دي، ځکه مجاهد پوهېږي چې په جګړه کې تجربه ډېره ضروري ده.
مجاهد له الله تعالی(ﷻ) سوال کوي چې د هرې جګړې او د دښمن له هر بريده د دفاع پر مهال نوي درسونه تر لاسه او ګټه ترې واخلي، خو له دې سره سره جګړه پر مخ بيايي او د جګړې په منځ کې د لمانځه لپاره دريږي.
ځينې خلک فکر کوي چې دښمن له مجاهده د همدې مهال (لمانځه) انتظار

[1] - متفق عليه

باسي، خو مجاهد دا ډول بې معنا خبرو ته توجه نه کوي، ځکه پوهېږي چې له روحي روزنې پرته، يوازې نور تمرينونه هېڅ ګټه نه لري او تجربه هم اړينه ده.
مجاهد پوهېږي چې هيڅاته هم د احمق او کم عقل په سترګه کتل نه دي په کار، ځکه چې ژوند د يوې اوږدې مودې په ترڅ کې هر چاته روزنه او ښوونه ورکوي.
مجاهد همدا راز باور لري چې کېدای شي ځينې پېښې بيا بيا تکرار شي او هغه به له يو لړ ستونزو سره يو ځل بيا مخ کيږي، کله کله له ځان سره وايي: "زه تر دې دمخه هم له دې حالاتو تېر شوی وم". هو دا سمه ده چې پر يو مجاهد يو ډول حالات بيا بيا راځي، خو ته بايد وپوهيږې چې له دې ستونزو سره په بشپړه توګه نه وې مخ شوی.
دا هغه مهال دی چې مجاهد دې پايلې ته رسيږي، الله(ﷻ) يې ازمايي، الله تعالی(ﷻ) وربانديې هغه سختۍ او ستونزې بيا راوستې چې مخکې ورسره مخ شوی و څو هغه څه ور زده کړي، چې په لومړي ځل يې له دا ډول ستونزو سره د مخ کېدو پر مهال په بشپړه توګه نه و زده کړي.



# چل او چالاکي

د الله تعالی رسول(صل الله عليه وسلم) فرمايلي:
﴿عَنِ ابْنِ كَعْبِ بْنِ مَالِكٍ عَنْ أَبِيهِ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا أَرَادَ غَزْوَةً وَرَّى بِغَيْرِهَا وَقَالَ اَلْحَرْبُ خُدْعَةٌ﴾[1]
ژباړه: (کعب بن مالک له خپل پلار روايت کوي چې ويل يې: کله به چې رسول الله(صل الله عليه وسلم)کومې غزا ته د تګ اراده وکړه، نو بل ډول به يې څرګندوله، او فرمايل به يې چې جنګ چل او تکتيک دی).
مجاهد د دوهم راشد خليفه حضرت عمر(رضی الله عنه) هغه نصيحت ياد ساتي، چې حضرت سعد بن ابي وقاص(رضی الله عنه) ته يې کړی: "زه تا او ستا ملګرو ته په هر حال کې له الله څخه د وېرې امر کوم، ځکه چې له الله تعالی(ﷻ) وېره د دښمن پر ضد تر ټولو ښه وسله ، په جګړه کې ښه حيله او مکيده ده".
مجاهد هېڅکله هم د دښمن په حيله، مکر او ټګۍ کې نه پرېوزي، بلکې بالعکس بايد دښمن ته دهوکه ورکړي، ويې غولوي او هغه تېرباسي.
سره له دې چې پر دښمن د هغه د برياليتوب جذبه په خوټېدو وي بيا هم له چل او لوبې نه غافله کيږي او همدلته مجاهد د يو نظامي کارپوه په توګه

1 - تهذيب الاثار للطبري

راڅرګندېږي، کله چې د ځواک کموالی حس کړي، دښمن ته داسې احساس ورکوي، چې د ځای د بدلولو یا د خپل مورچل د پرېښودلو لپاره بېړه نه کوي، بلکې اوس هم قوي او ځواکمن دی.

کله چې د دښمن د لښکر په ښي اړخ د برید اراده لري دښمن ته داسې ښيي چې ګوندې هغه د چپ اړخ په لور روان دی، خو کله چې له دښمن سره په سمدستي جګړه کې ښکېل کېږي داسې څرګنده کړي چې ګوندې خوب پرې غلبه کړې او ویده کېدل غواړي.

د هغه ملګري وایي: "وګورئ ! روحیات یې څومره کمزوري او پرېوتي دي ". خو مجاهد د دا ډول خبرو پروا نه کوي، بلکې د هغه د څنګ ملګري د هغه په چل، فریب، دهوکو او هغو چلونو نه پوهېږي، چې د جګړې په ډګر کې کار ترې اخلي، خو مجاهد خپله پوهېږي چې څه اراده لري.



# ستراتیژي

الله تعالی(ﷻ) په خپل مقدس کتاب کې فرمایي:

﴿يرْفَعِ اللَّهُ الَّذِينَ آمَنُوا مِنْكُمْ وَالَّذِينَ أُوتُوا الْعِلْمَ دَرَجَاتٍ وَاللَّهُ بِمَا تَعْمَلُونَ خَبِيرٌ﴾[1]

ژباړه: (الله تعالی(ﷻ) ستاسې له جملې مؤمنان او په ځانګړې توګه هغه کسان چې علم ورکړل شوی په لوړو درجو سره پورته کوي او الله تعالی(ﷻ) په هغه څه ښه خبر دی چې تاسې یې کوئ).

کله مجاهد د روانو اوبو په څېر وي د هغو خنډونو په شا او خوا راخوټکېږي، چې په مخ کې یې وي، کله چې د مقاومت پایله حتمي مرګ وي، نو مجاهد د وخت او حالاتو په نظر کې نیولو سره بې له دې چې شکایت وکړي د غرونو، کږلېچونو او تنګیو په منځ کې له ډېرو ډکه لار غوره کوي.

بیا نو د هغه ځواک د اوبو په څېر شي، چې په توره نه وهل کېږي او په چابک (قمچینه) له منځه نه ځي، ځکه چې یوه توره هم د اوبو پر مخ پرهار نه شي جوړولای.

د سیندونو اوبه د هغه احتمالاتو او خواصو سره ځان برابروي، چې ورسره مخ کېږي او په هر حال کې خپل وروستي هدف ته د رسېدو کوښښ کوي، چې هغه بحر دی، کمزورې ویاله په ورو ورو قوي کېږي او له سترو نهرونو سره یو ځای کېږي، چې همدا کمې اوبه بیا نه ماتېدونکي او نه مغلوبېدونکي حالت ته رسیږي.

ابو بکر صدیق (رضی الله عنه) یزید بن ابو سفیان(رضی الله عنه) ته وویل:

1- المجادلة:۱۱

"ما ته د ازمښښت لپاره قوماندان مقرر کړی يې، چې وګورم ته خپله دنده په ښه توګه تر سره کوې او که نه؟ که چېرته دې په ښه توګه تر سره کړه نو بېرته به دې پخوانۍ دندې ته واستوم او بيا به له هغې هم پرمختګ درکړم او که دې در سپارل شوي کارونه په ښه توګه تر سره نه کړل، نو ستا له غاړې به ټولې دندې او مسئوليتونه لرې کړم.

له الله تعالی(ﷻ) څخه ووېرېږه، ځکه هغه ستا باطن همدومره ويني، لکه ستا ظاهر چې ويني، څوک چې الله تعالی(ﷻ)ته په ښو کارونو نږدېوالی غواړي، همغه خپل رب ته تر ټولو زيات نږدې وي.

ته مې د خالد بن وليد(رضی الله عنه) پر ځای مقرر کړی يې، نو خپل جاهليت او ځان غوښتنه شاته وغورځوه، ځکه چې دغه کارونه الله تعالی(ﷻ)دومره بد ګڼي، لکه څنګه چې کفار بد ګڼي.

کله چې خپل لښکر ته ورشې ښه رويه ورسره وکړه، له هغوی سره ښه وکړه، ورکړه کوه، د نصيحت پر مهال له لنډيزه کار اخله، ځکه کله چې خبرې ډېرې شي پخوانۍ ويناوې هېرېږي، خپل ځان اصلاح کړه او که د ځان په اصلاح قادر شوې نو، ستا تر لاس لاندې خلک به هم اصلاح شي، خپلې دعاګانې (لمونځونه) پر وخت اداء کوه، د رکوع پر مهال دعا کوه او له الله(ﷻ) ووېرېږه.

کله چې درته د دښمن قاصد راشي احترام يې کوه، خو د خپل پوځ په لښکرکوټ[1] کې يې ډېر پاتې کېدو ته مه پرېږده څو د تګ پر مهال له ځان سره د لښکرکوټ په اړه معلومات يونه سي او که چېرته ډېر پاتې شي، نو ستا د کمزورۍ نقطې به په نښه او ستا په پټو رازونو به پوه شي، بلکې د دې پر ځای په خپل لښکر کې د قوت ځای ورڅرګند کړه.

[1]-لښکرکوټ په اوسني وخت کې د مجاهدينو د يو مرکز او يا سنګر په توګه يادولای شو، محض هغه ځای ته هم د لښکرکوټ نوم ورکول کېدای شي چې مجاهدين پکې راټوليږي.



خپل هېڅ خاص سړی مه پرېږده، چې د دښمن له قاصد سره خبرې وکړي، بلکې له تا پرته دې هغه سره بل هېڅوک خبرې نه کوي او د خبرو پر مهال څرګند او روښانه اوسه.

د شپې له مخې د خپلو ملګرو په منځ کې ويښ اوسه، ځکه چې په دې لړ کې به ډېر څه تر لاسه کړې، ډېرې پردې به ستا له مخې لرې شي، د خپل لښکرکوټ په هر کونج کې ساتونکي څاره، ناڅاپي ورځه، که څوک دې ويده وموند، هغه ته درس ورکړه، ويې رټه، سزا ورکړه، خو په ډېرې سختۍ سره نه، د تېروتونکو له رټنې مه وېرېږه، خو په دې لړ کې له بېړې هم کار مه اخله.

خپل مجاهدين بې مراقبې او څار مه پرېږده او کنه نو هغوی به بې لارې شي، په هغوی جاسوسي هم مه کوه، ځکه دا به هغوی ته شرم او سپکاوی ښکاره شي، د هغوی تېروتنې خلکو ته مه اعلانوه، د هغوی له ښه ښکارېدو او حسن مظهر څخه ځان ډاډه کړه، له ټولو سره ناسته مه کوه، بلکې له مخلص او باوري خلکو سره مجلس او ناسته پاسته کوه، بې زړه او ډارن مه اوسه که نه نو ستا لښکر به هم ټول ډارن او بې زړه شي، د جګړې په غنيمتونو کې غلا مه کوه، ځکه چې دا ډول کړنه شخصي ګټه راوړي، خو بريالیتوب ستاسې څخه لرې بيايي، کله چې دې خلک په لمانځه وليدل، په خپل حال يې پرېږده".

د اسلام د ستر خليفه او عظيم قايد په نصايحو کې مو وليدل، چې ابو بکر (رضی الله عنه) به د لښکر د شمېر د کموالي تشه د هغوی د قوماندان د قوت په زياتوالي ډکوله.

مجاهد بايد په يو وخت کې چست، چالاکه او صبرناک وي، يو حکيم سړي ويلي دي: "له خپل حالت سره سم پر خپل توان نظر لره او دغه توان په خپل ځای کاروه".

رسول الله(صل الله عليه وسلم) به هرې غزا ته د تګ پر مهال خپل هدف پټولو او د هغې پر ضد به يې بل څه څرګندول، څو له دښمن څخه خپل هدف پټ

کړي.
په عمومي ډول دوه ستراتيژيکي تېروتنې موجودې وي: لومړی له يو مناسب وخته مخکې کېدل او بيړه کول، دوهم له مناسب وخته وروسته کېدل، سستي او ځنډ کول.
د دې لپاره چې له دې تېروتنو خوندي شي، مجاهد د تل لپاره د هرې پېښې په جلا جلا توګه څېړنه کوي او په هېڅ ځای کې هماغه يو عام حل او مشترکه نسخه نه کاروي، له پخوا څخه چمتو شويو لارښوونو څخه کار نه اخلي، بلکې د بل په پرتله هر ځانګړي حالت ته په جلا سترګه ګوري.
حضرت عمرو بن العاص(رضی الله عنه) فرمايلي:
"زه هېڅ يو داسې حالت کې نه يم ښکېل شوی، چې لا د مخه مې د امکان په صورت کې د هغه ډول حالت له رامنځ ته کېدو څخه د شاتګ لارې چارې نه وي څېړلې، خو کله چې په همدا ډول يو حالت کې داخل شوی يم، نو ورڅخه د وتلو لپاره هېڅکله هم بيړه او تلوار نه کوم".
چينايي حکمت د استراتيژيو په اړه وايي:
"خپل دښمن ته داسې احساس ورکړه، چې فکر وکړي پر تا له بريده ډېره ګټه نه شي تر لاسه کولای، ځکه په دې ډول کولای شې د دښمن تر ټولو سخت جذبات او احساس کمزوري کړې".
که ودې ليدل چې حالات د دښمن په ګټه دي، نو د جګړې د ډګر د پرېښودلو له امله شرم مه احساسوه، ځکه چې نتيجه د يوې جګړې تر پای پورې نه شي ترړل کېدای بلکې، د ټول جنګ پايله د اهميت وړ ده.
که چېرته پوره توان لرې، نو بيا شرم يو خواته کېږده او د کمزورۍ څرګندونه وکړه، چې په دې سره به دښمن بې صبره او بې احتياطه شي او د بريد لپاره به د يو مناسب وخت د راتګ انتظار نه کوي.
پر دښمن د ناڅاپي بريد مهارت تر لاسه کول او د هغه د غفلت پر مهال بريد



کول د جګړې د ګټلو لپاره يو لازمي او مهم شرط دی.
لاندې د جګړې پنځه قواعد او اصول دي، چې يو چينايي حکيم(جوان چي Chi Juan)[1] څو پېړۍ دمخه برابر کړي دي:
١-عقيده: له جګړې مخکې بايد ته پوه شې چې په کومه عقيده جنګېږې.
٢-ملګرې: بايد وپوهېږې چې څه ډول ملګری انتخابوې او بيا له هغه سره اوږه په اوږه جګړه پيلوې، ځکه په جګړه کې فتحه يوازې نه شي تر لاسه کېدای، بلکې فتحه په يو والي او ښه ملګرتيا کې نغښتې ده.
٣-وخت: يو غوره مجاهد پوهېږي چې په ژمي کې د جګړه ييزو عملياتو لپاره هغه تکتيکونه کارول کيږي، چې په دوبي کې ترې کار نه اخيستل کيږي، نو له همدې امله د جګړې د پيل لپاره يو ښه وخت غوره کوي.
٤-سيمه: يو حقيقي مجاهد پوهېږي چې په غرونو کې جګړه د هوارو له جګړې توپير لري، له همدې امله بايد د هر څه ښه ارزيابي وکړي او د جګړې د پيل لپاره ښه او مناسبه طريقه او سيمه غوره کړي.
٥-ستراتيژي: يو ښه او پوه مجاهد هغه دی، چې د جګړې له پيله دمخه په خپلې زيرکتيا، مهارت، فراست او چالاکۍ سره د جګړې په پېښو پوه شي، بيا د جګړې لپاره ځان چمتو او د مرحلو لپاره يې پلان جوړ کړي.

[1] - جوان چي يو چينايي فيلسوف، شاعر او مفکر دی، چې د ٢١٠ او ٢٦٣ ميېلادي کلونو په منځ کې ژوندی و.

# نیمګړتیا

الله تعالی(ﷻ) په خپل سپېڅلي کتاب کې فرمایلي:

﴿فَاعْلَمْ أَنَّهُ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ وَاسْتَغْفِرْ لِذَنْبِكَ وَلِلْمُؤْمِنِينَ وَالْمُؤْمِنَاتِ وَاللَّهُ يَعْلَمُ مُتَقَلَّبَكُمْ وَمَثْوَاكُمْ﴾[1]

ژباړه: (نو پوه شه چې نه شته هېڅ بر حق معبود مګر یوازې یو الله تعالی(ﷻ) دی، د خپلې ګناه او د مؤمنانو نارینه او ښځینه و لپاره بښنه غواړه او الله (ﷻ) ته ځرګند دی ځای د ورتګ ستاسې "په دنیا یا په ورځ کې" او ځای د هستوګنې ستاسې "په اخرت یا په شپه کې").

مجاهد د جهاد په لار کې له ډېرو خلکو سره لېدلو کتلو ته اړ کېږي، خو وروسته د ځینو خلکو بد اړخونه رابرسېره شي، په دې لړ کې یوه کمزوري دا هم ده، چې یو شمېر خلک د جګړې د جذبې تر شا پټېږي (خپله اصلي څېره د جذباتو او احساساتو تر څېرې لاندې پټه ساتي ) او کوښښ کوي، چې د یوازې کېدو وېره د خپلواکۍ تر نقاب لاندې پټه کړي "له دې کبله چې وېرېږي په جګړه کې یوازې نه شي، داسې ځرګندوي، چې ګوندې خپلواک دی او له هېڅ شي ترهه نه لري".

هغوی په خپلو مهارتونو او وړتیاوو باور نه لري، خو بیا هم په هر ځای کې د خپلو فضایلو او ارزښتونو په اړه خبرې کوي، ځکه خو مجاهد په ټولو هغو نارینه او ښځینه کې چې باید ورسره وپېژني همدا نښې نښانې ځاري، خو یو مجاهد هېڅکله هم په وهم او شک کې نه پرېوزي، هېڅکله هم په لومړۍ لېدنه کې په چا باور نه کوي او که چېرته هغوی د ده د راجلبولو، متاثره کولو

[1] - محمد:۱۹



او خپل ځان ته د هغه د پام د راګرځولو کوښښ وکړي، نو مجاهد باید چوپتیا غوره کړي.

مجاهد په هر حال کې له فرصته ګټه اخلي، څو خپلې نیمګړتیاوې سمې او پوره کړي، ځکه هغه د هیندارې په څېر د نورو په مخونو کې خپل ځان ویني.

الله تعالی(ﷻ) فرمایي:

﴿لَهُ مُعَقِّبَاتٌ مِنْ بَيْنِ يَدَيْهِ وَمِنْ خَلْفِهِ يَحْفَظُونَهُ مِنْ أَمْرِ اللَّهِ إِنَّ اللَّهَ لَا يُغَيِّرُ مَا بِقَوْمٍ حَتَّى يُغَيِّرُوا مَا بِأَنْفُسِهِمْ وَإِذَا أَرَادَ اللَّهُ بِقَوْمٍ سُوءًا فَلَا مَرَدَّ لَهُ وَمَا لَهُمْ مِنْ دُونِهِ مِنْ وَالٍ﴾[1]

ژباړه: (د انسان لپاره (د الله تعالی(ﷻ) له خوا ملایکې ټاکل شوي) یوه په بلې پسې نوبت په نوبت انسان ته د مخې او د شا له اړخه راځي، د الله تعالی(ﷻ) په حکم د دې انسان ساتنه کوي، بې شکه الله تعالی(ﷻ) د هېڅ یو قوم حالت تر هغه وخته نه بدلوي، څو چې هغه قوم په خپله د خپل ځان حالت بدل نه کړي او کله چې الله تعالی(ﷻ) یو قوم ته د بدۍ (عذاب) اراده وکړي، نو څوک یې نه شي رد کولای او دوی ته له الله(ﷻ) پرته بل مرستندوی نه شته).[2]

[1] - الرحمن:۱۱

[2] -یعنی مجاهد باید خپلې نیمګړتیاوې پوره کړي او د نورو په وړاندې د خپلو نیمګړتیاوو د پټولو کوښښ و نه کړي، که څه هم په دې وتوانیږي خو الله جل شانه یې ویني او هغه څه به خامخا ورپېښېږي چې الله یې اراده کړې ده.

# مخامخ کېدنه

الله تعالی(ﷻ) فرمایلي:

﴿وَلِكُلٍّ وِجْهَةٌ هُوَ مُوَلِّيهَا فَاسْتَبِقُوا الْخَيْرَاتِ أَيْنَ مَا تَكُونُوا يَأْتِ بِكُمُ اللَّهُ جَمِيعًا إِنَّ اللَّهَ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ﴾[1]

ژباړه: (د هر یو(امت) لپاره یوه قبله ده، چې هغوی (په لمانځه کې) هغې ته مخ ګرځوي، نو نېکیو ته یو تر بله مخکې شئ، هر چېرته چې یئ الله تعالی(ﷻ) به تاسې ټول (د قیامت په ورځ د اعمالو د جزا لپاره) راولي، بې شکه الله تعالی(ﷻ) په هر څه قادر او توانا دی).

رسول الله(صل الله علیه وسلم) فرمایلي دي:

﴿عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّه صَلَّى اللَّهُ عَلَيْه وَسَلَّمَ مَنْ نَفَّسَ عَنْ مُؤْمِنٍ كُرْبَةً مِنْ كُرَبِ الدُّنْيَا نَفَّسَ اللَّهُ عَنْهُ كُرْبَةً مِنْ كُرَبِ يَوْمِ الْقِيَامَةِ وَمَنْ يَسَّرَ عَلَى مُعْسِرٍ يَسَّرَ اللَّهُ عَلَيْهِ فِي الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ وَمَنْ سَتَرَ مُسْلِمًا سَتَرَهُ اللَّهُ فِي الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ ، وَاللَّهُ فِي عَوْنِ الْعَبْد مَا كَانَ الْعَبْدُ فِي عَوْنِ أَخِيه﴾[2]

ژباړه: ( له ابو هریرة (رضی الله عنه) روایت دی، چې رسول الله(صل الله علیه وسلم)فرمایلي دي: څوک چې له یو مؤمن څخه د دنیا له غمونو یو غم او سختي کمه کړي، الله تعالی(ﷻ) به ورڅخه د قیامت د ورځې غم او سختي لرې کړي، څوک چې په سختۍ کې ایسار انسان باندې اساني راولي، الله تعالی(ﷻ) به پر

1 - البقرة:١٤٨

2 - صحيح المسلم.



هغه باندې په دنیا او اخرت کې اساني راولي، څوک چې پر یو مسلمان پرده راولي الله تعالی(ﷻ) به هغه په دنیا او د قیامت په ورځ کې پرده دار وساتي، او الله تعالی(ﷻ) په هغه اندازه او تر هغه وخته د خپل بنده مرسته کوي، چې بنده د خپل مسلمان ورور مرسته کوي).

هغه مجاهد به هېڅکله هم د توفانونو په وړاندې ونه لړزیږي چې د خپلو ورونو او دوستانو ساتنه او له هغوی سره مینه کوي، هر وخت به په خپل ځان کې یو قوت او توان مومي، چې له مصیبتونو سره مقابله وکړي او په مصیبتونو بریالیتوب ومومي، همدا ډول به په سلامتیا سره مخ په وړاندې ځي.

کله به مجاهد د خپلو ملګرو له منځه له هغه چا سره مخالفت څرګندوي چې مینه ورسره لري، خو هغه خپل چاپېریال ته ګوري، خپل ملګري او مخلص دوستان ښه پېژني، مجاهد وروسته او وړاندې ته نظر کوي، پوهېږي چې دښمن یې څوک دی.

د خیانت او درغلۍ په مقابل کې سخت زړی او متشدد وي، خو د غچ اخیستلو غوښتونکی نه وي بلکې له خپل ژونده د خیانت کوونکو په ایستلو بسنه کوي او همدغه اقدام مجاهد د خاینانو دښمنۍ او جګړې ته نه هڅوي.

مجاهد ته خپله ځواکمنتیا ورڅرګنده وي، ځکه خو په خپلو توانونو، مهارتونو او فضایلو، زړورتوب او ښو خاصیتونو فخر ته اړتیا نهویني، هېڅکله هم کوښښ نه کوي چې هغه کار وکړي چې د یو بل چا له خوا ورسپارل شوی دی څو له خپل حقیقت پرته بل څه ښکاره کړي.

د مجاهد په قاموس کې د خلکو په اړه د ښه او بد توپیر نه موندل کیږي، بلکې په نظر کې یې ټول برابر وي او په دې لړ کې د هغه په نزد ثبات او په سمه لار تګ د یوې تلې حیثیت لري.

یو شمېر داسې خلک هم شته چې په ټوله معنا په خپل ځای، ځان او مرتبه

راضي نه وي، په دې توګه خپل ځان ته هم زيان رسوي او نورو ته هم، په دې لار کې وخت ناوخته په قصدي توګه داسې کارونه هم تر سره کوي، چې شخړه رامنځ ته شي او مقابل لوری اړ شي، چې په يو غير مسئولانه عمل لاس پورې کړي ، دغه مهال مجاهد ته خپل زړه داسې وايي:
"له سپکاوي تېر شه، د بل سپکاوی کول ستا په قدر، منزلت او مرتبه کې هېڅ هم نه شي زياتولای، بلکې يوازې ستا توان به ضايع او له منځه يوسي ".
ځکه چې مجاهد د نورو ننګونو، ګواښونو او شخصي دريځونو ته په ځواب ويلو سره خپل وخت نه ضايع کوي، بلکې پوهېږي چې ټول هغه څه چې د الله تعالی(ﷻ) له خوا ليکل شوي، خامخا کېدونکي دي.



## تکتيکونه

الله تعالی(ﷻ) په خپل کتاب قرآن عظيم الشان کې فرمايلي:
﴿وَقُلِ اعْمَلُوا فَسَيَرَى اللَّهُ عَمَلَكُمْ وَرَسُولُهُ وَالْمُؤْمِنُونَ وَسَتُرَدُّونَ إِلَى عَالِمِ الْغَيْبِ وَالشَّهَادَةِ فَيُنَبِّئُكُمْ بِمَا كُنْتُمْ تَعْمَلُونَ﴾[1]
ژباړه : (او دوی ته ووايه (ای محمده!) چې څه مو خوښه وي هغه کوئ، ژر به الله (ﷻ) ، د هغه رسول او مؤمنان ستاسې اعمال ووينې او ژر به بوتلی شئ عالم د پټو او ښکاره وو ته چې الله (ﷻ) دی او الله به تاسې په هغه څه خبر کړي چې کول مو ) .
د جنګ ډګر ته تر داخلېدو او د جګړې له پيله دمخه تر مجاهد پورې ډېر هغه څه اړه لري، چې بايد تکيه پرې وکړي، مجاهد له ځانه پوښتنه کوي:
"که چېرته له خپل ځان سره په جنګ کولو مجبور او اخته شم بايد څه وکړم؟ تر کومه حده کولای شم خپلو مهارتونو ته پرمختګ ورکړم، او خپل ځواکونه ډېر کړم ؟؟؟ "
په دې ډول مجاهد کولای شي، خپلې کمزورۍ په نښه او وپوهېږي، چې له هر جنګه يې لږ تر لږه يو څه زده کړي دي، سره له دې چې پوهېږي له جګړو څخه تر لاسه کړو درسونو ورته ډېر تکليفونه رسولي دي.
د جګړې له رانژدې کېدو سره بايد مجاهد له ګومانه لرې پېښو رامنځ ته کېدو ته هم چمتوالی ولري، همېشه کوښښ کوي چې پر دښمن لومړی ګوزار وکړي او د جګړې د پيل لومړيتوب په خپل لاس کې ولري، ځکه په دې توګه کولای

[1] - التوبة:۱۰۵

شي پر دښمن خپل جګړه ییز پروګرام عملي او تحمیل کړي، خو کله چې دښمن د وسایلو او شمېر له پلوه پر هغه زیات وي، نو مجاهد له هغو تکتیکونو کار اخلي، چې د هغه سپېڅلو پلرونو او نیکونو ورڅخه اخیستی چې موږ یې د (مچیو تکتیکونو ) په نوم یادوو.

د مچیو په تکتیکونو کې مجاهدین له دښمنه ګېره اچوي او محاصره کوي یې، پر دښمن منظم او ګڼ بریدونه کوي ولو که کمزوري وي، هره هغه برخه په نښه کوي چې برید ته برابره وي، په دې توګه دښمن خپل توان له لاسه ورکوي او په یو ځای ترکیز نه شي کولای، دا هغه حالت دی چې د مجاهدینو د کمیت جګړه کیفي او نوعي شکل غوره کوي.

لاندې هغه لیک دی چې حضرت عمر(رضی الله عنه) د مسلمانانو د لښکر قوماندان حضرت سعد بن ابي وقاص(رضی الله عنه) ته استولی او په هغې کې یې ورته عسکري او نظامي لارښوونې کړې دي.

عمر ابن الخطاب(رضی الله عنه) سعد بن ابي وقاص(رضی الله عنه) [1] ته ولیکل:

"تا او ستا لښکر ته امر کوم، چې تر دښمن زیات له خپلو ګناهونو ووېرېږئ، ځکه چې د لښکر ګناهونه د هغوی لپاره له دښمنه زیات وېروونکي دي، د دښمن د ګناهونو او د الله تعالی(ﷻ) له فرمانه د سرغړونې له کبله له مسلمانانو سره مرسته کیږي، که چېرته داسې نه وای نو موږ به هېڅکله هم پر هغوی بریالي شوي نه وو، ځکه چې زموږ شمېر هم له هغوی کم او زموږ اوزار هم، که چېرته له هغوی سره په ګناهونو کې هم برابر شو، نو هغوی به له موږه ځواکمن

[1] - حضرت سعد بن ابي وقاص د عراق او شا و خوا سیمو د فتحې لپاره د هجرت په دیارلسم کال له اسلامي لښکر سره استول شوی و، چې په پای کې هغه فارسیان له یادو سیمو و ایستل او هغوی ته یې د قادسیې په ډګر کې شرموونکې ماتې ورکړه.



وي، که چېرته موږ پر هغوی د فضیلت له کبله غالب نه شو، د قوت له امله هېڅکله هم نه شو غالب کېدای.

خبر اوسئ چې ستاسې په سفر کې د الله تعالی(ﷻ) ملایکې له تاسې سره ملګرې دي، هغوی پوهېږي چې تاسې څه کوئ، له هغوی حیا وکړئ، په داسې حال کې چې د الله(ﷻ) په لار کې وځئ د الله تعالی(ﷻ) نافرماني مه کوئ، داسې مه وایئ چې زموږ دښمن له موږه هم بد دی، نو په موږ مسلط کېدای نه شي، ډېر کرته پر یو قوم له هغوی څخه شریر او بد مسلط شوي، لکه څرنګه چې په بني اسرائیلو باندې مجوسیان مسلط شول، هغه مهال چې هغوی ګناهونه پیل کړل.

د خپلو نفساني غوښتنو پر ضد له الله(ﷻ) مرسته وغواړئ، لکه څنګه چې پر خپل دښمن د بریالیتوب دعا کوئ.

د تګ پر مهال له مسلمانانو سره نرم چلند وکړه، هره اونۍ یوه شپه او ورځ له خپلو ملګرو سره ارام کوه، څو هغوی مستریح وي، ځانونه تازه کړي، وسلې او بار له اوږو کوز کړي.

له هغه کلیو څخه د خپل توان په اندازه لرې اوسه چې تړون ورسره شوی او ذمیان پکې استوګنه کوي، په دې کلي کې له باوري او مذهبي خلکو پرته هېڅوک هم مه پرېږده.

د دې لپاره چې دښمن ته ماتې ورکړې، د هغو خلکو په وړاندې چې تا ورسره تړون لاسلیک کړی، هېڅ ډول بې عدالتۍ ته اجازه مه ورکوه، د دښمن سیمې ته له ننوتلو د مخه یو څوک ولېږه، چې د دښمن په اړه معلومات راوړي، ځینې سیمه ییز خلک له ځان سره وساته، خو هغه چې تاته وفادار وي او ته پرې باور کوې، ځکه چې هر درواغجن بې ګټې وي ولو که کله کله رښتیا هم وایي، غولوونکی ستا د ګټې نه، بلکې ستا د زیانونو څارنه او جاسوسي کوي.

ډېر ځله سیمې ته له بریده مخکې ډلګۍ استوه، د دا ډول ډلګیو لپاره زیرک،

چالاک او ازمایل شوي خلک غوره کړه، هغوی ته ښه اسونه ورکړه، د انتخاب پر مهال له خپلې خواخوږۍ، پلوۍ او زړه سوي ځنې کار مه اخله، هغو سیمو ته چې خورا خطرناکې وي ډلګۍ او جبهې مه استوه، کوښښ وکړه چې د سیمې او خلکو په اړه معلومات ترلاسه او ویې پېژنې.
کله چې دښمن ووینې نو خپل ټول عسکر، ډلګۍ او جبهې راټولې کړه، خپل ټول قوت راغونډ کړه، تر هغه وخته جګړه مه پیلوه، چې ورته په بشپړه توګه چمتو شوی نه یې، کله چې د دښمن کمزوري ووینې، نو برید پرې وکړه، له دښمن سره په هغه طریقه چلند کوه چې له تا سره یې کوي، خپل لښکر په ښه توګه راهنمایي کړه، د شپې د بریدونو پر مهال له احتیاطه کار واخله.
یو بندي له سر پرې کولو پرته مه خوشې کوه، ځکه چې په دې کار سره به د الله تعالی(ﷻ) او ستا دښمنان وویرېږي، الله(ﷻ) تا او ستا ملګري ساتي، الله(ﷻ) هغه ذات دی، چې د دښمن پر ضد بریالیتوب ورکوي او یوازینی هغه ذات دی چې ته ورځخه د مرستې غوښتنه کوې ".
مجاهد پوهېږي چې هر وخت د پوره ارام یا بشپړ تشنج په حالت کې اوسېدل ناشوني دي، د مجاهد حالت یو غشي ویشتونکي ته ورته دی، چې باید هر وخت خپله لیندۍ کات وساتي[1]، هغه وینې چې د سختیو پر مهال اس له خپلو ټولو اندامونو کار اخلي، خو له دې سره سره باید مجاهد د تشویش او بې معنا بیړې تر منځ په توپیر وپوهېږي، مجاهد باید دا دواړه حالتونه سره ګډوډ نه کړي.
هغه پوهېږي چې د غټو هوسیو طاقت د هغوی په پښو کې وي، خو د هیلیو قوت د هغوی د سترګو په تېز والي کې وي، کله چې په اوبو کې یو ماهي ووینې، ښکار کولو ته یې لېواله شي، مجاهد پوهېږي، چې پړانګ له کوږ

1 -یعنی هر مهال چمتو وي.



ځخه نه وېرېږي او دا له دې امله چې پړانګ په خپل قوت پوره باور لري. مجاهد هم پوهېږي چې پر چا اعتماد ممکن او پر چا نه دی.
مجاهد تل له خپلې زړمې خبر وي، چې له درې شیانو جوړه ده:
اول: په الله تعالی(ﷻ) ایمان.
دوهم: د الله(ﷻ) د رحمت امید.
درېیم: د اسلام او مسلمانانو مینه.
کله چې دا درې خیزونه بشپړ شي، نو مجاهد د الله په مرسته په خپله لار درومي.
لله تعالی(ﷻ) فرمایلي دي:
﴿وَلَقَدْ أَرْسَلْنَا مِنْ قَبْلِكَ رُسُلًا إِلَى قَوْمِهِمْ فَجَاءُوهُمْ بِالْبَيِّنَاتِ فَانْتَقَمْنَا مِنَ الَّذِينَ أَجْرَمُوا وَكَانَ حَقًّا عَلَيْنَا نَصْرُ الْمُؤْمِنِينَ﴾[1]
ژباړه: (او په تحقیق سره (ای محمده) له تا وړاندې مو هم رسولان خپلو قومونو ته استولي وو، دغه رسولان هغوی ته ښکاره معجزو سره ورغلل، او موږ غچ واخیست له هغو کسانو چې مجرمان شول (رسالت یې درواغ وباله) او حق دی پر موږ مرسته د مؤمنانو).

1 - الروم:٤٧

# ټینګار

الله تعالی(ﷻ) په خپل سپیڅلي کتاب کې فرمایلي:

﴿وَلَنَبْلُوَنَّكُمْ حَتَّى نَعْلَمَ الْمُجَاهِدِينَ مِنْكُمْ وَالصَّابِرِينَ وَنَبْلُوَ أَخْبَارَكُمْ﴾[1]

ژباړه: (او خامخا موږ تاسې (په جهاد او نورو تکالیفو سره) ازمایو، چې ستاسې له منځه مجاهدین او صابران ښکاره کړو او موږ امتحانوو ستاسې عملونه "د ایمان چې ایا رېښتیا دي او که درواغ").

مجاهد د هغه اصل او بنسټ په خپلولو سره چې له (چینګ اول)[2] څخه رانقل شوی فخر کوي، چې وايي:

"ټینګار ګټور او بې خطره وي"، خو دا هم یاد لرئ، چې ټینګار د سرتمبه ګۍ او دښمنۍ نوم نه دی.

هر کله چې د جګړې موده اوږده شي نو فشار زیات او معنویات ښکته کیږي، له همدې امله مجاهد باید وخت تر بله خپل تکتیکونه بدل کړي، په ځانګړې توګه هغه مهال په شاتګ او ارام کوي، کله چې د مقاومت د وړتیا پر ختمېدو پوه شي.

---

[1] -محمد: ۳۱

[2] -(1-Ching) یو لرغونی چینایي کتاب دی چې د جنګي اصولو او قواعدو په ګډون ډول ډول امور په کې راټول کړای شوي دي، لرغونتوب یې له درې زره څخه تر څلور زره کلونو پورې رسیږي او اوسمهال هم له دې کتاب څخه ګټه اخیستل کیږي.



یو مجاهد د خپل نیت او ارادو په پوره کولو ټینګار کوي، یوه مناسبه شېبه غوره کوي، پر دښمن یو نوی او تازه برید رهبري کوي، خو هر ځل د جنګ ډګر ته د دښمنۍ او سر تمبه ګۍ له کبله نه راستنیږي، بلکې د هغه څه د تر سره کولو لپاره چې له امله یې کوښښ کوي.

هغه په زړه کې وایي: "یو وخت و چې ما به د نورو د زړورتیا کیسې او داستانونه اورېدل، یو وخت و چې ما یوازې د ژوندي پاتې کېدلو لپاره ژوند کولو، خو اوس د دې لپاره ژوند کوم چې د الله(ﷻ) د لارې یو مجاهد یم، یوه ورځ به د هغه ذات په مخ کې درېږم، د چا په لار کې چې ما د خپل ژوند ډېره برخه په جهاد کولو تېره کړې ده".

# کړاوونه

الله تعالی(ﷻ) فرمایلي:

﴿وَمِنَ النَّاسِ مَنْ يَشْرِي نَفْسَهُ ابْتِغَاءَ مَرْضَاةِ اللَّهِ وَاللَّهُ رَءُوفٌ بِالْعِبَادِ﴾[1]

ژباړه :(او ځیني له خلکو هغه څوک دي چې خپل نفس د الله(ﷻ) د رضا د طلب لپاره خرڅوي (له خپله ځانه او ماله تېرېږي) او الله تعالی(ﷻ) په بنده ګانو ډېر مهربان دی).

همدا راز رسول الله(صل الله علیه وسلم)فرمایلي دي:

﴿عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَا يُصِيبُ الْمُسْلِمَ مِنْ نَصَبٍ وَلَا وَصَبٍ وَلَا هَمٍّ وَلَا حُزْنٍ وَلَا أَذًى وَلَا غَمٍّ حَتَّى الشَّوْكَةِ يُشَاكُهَا إِلَّا كَفَّرَ اللَّهُ بِهَا مِنْ خَطَايَاهُ﴾[2]

ژباړه: (ابو هریرة(رضی الله عنه) له رسول الله(صل الله علیه وسلم) څخه روایت کوي، چې هغه مبارک فرمایلي: نه رسیږي یو مسلمان ته هیڅ سختي، ناروغي، اندېښنه، خفګان، ضرر یا غم، تر دې چې که یو اغزی یې د بدن په کوم ځای کې ننوځي، نو په بدل کې به یې الله تعالی(ﷻ) د هغه ګناهونه لرې کړي).

مجاهد د خپلو سترګو ځلا مړاوې کېدو ته نه پرېږدي، هغه په همدې نړۍ کې ژوند کوي، له نورو خلکو یو څنګ ته کیږي نه، خپل سفر په پراخه زړه او د پراخه زړه سره پیلوي، ډېر کرته په دې وېرېږي، چې ایا د حق لوری یې نیولی او که نه؟ له همدې امله ځورېږي او کړیږي، خو د خپل ډاډ لټه کوي او دغه ډاډ

1 -البقرة:۲۰۷

2 - متفق علیه.



په لمانځه کې مومي.

مجاهد د پرله پسې کړاوونو پر مهال خپل توان په خبرو نه ضایع کوي، ځکه چې ډېر کرته یوازې خبرې ګټه نه کوي بلکې، په ډېرو ځایونو کې عمل له قوله ډېر ښه او ګټور وي.

یو ریښتینی مجاهد پر نورو له ظلم څخه ځان ژغوري.

حضرت محمد (صل الله علیه وسلم) فرمایلي:

﴿عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَعَثَ مُعَاذًا إِلَى الْيَمَنِ فَقَالَ اتَّقِ دَعْوَةَ الْمَظْلُومِ فَإِنَّهَا لَيْسَ بَيْنَهَا وَبَيْنَ اللَّهِ حِجَابٌ﴾[1]

ژباړه: (له ابن عباس(رضی الله عنه) څخه روایت دی، کله چې حضرت رسول الله(صل الله علیه وسلم) معاذ(رضی الله عنه) یمن ته استولو، ورته یې وفرمایل: د مظلوم له ښېرا ځان وساته، ځکه چې د مظلوم د دعا او الله تر منځ پرده نه شته).

مجاهد د دې حدیث په معنا ښه پوهېږي، د خپلو سختیو درندولو ته میلان نه لري او داسې نه ځرګندوي چې ګوندې د هغه ستونزې ډېرې دي، همېشه غلی او ارام اوسیږي، خو دا په دې معنا هم نه چې مجاهد وړو چارو ته التفات نه کوي، بلکې ډېر کرته له وړو چارو څخه غټې پیښې رامنځ ته کیږي.

یو مجاهد د نهیلۍ سره بلد وي، کله کله هغه ته ځان داسې ښکاري، چې په خپل روح کې د غوښتنې وړ جذباتي احساس نه شي راپارولای، په ډېرو اوږدو شپو ورځو کې تر فشار لاندې ژوند کوي او هیڅ یوه نوې پېښه نه شي کولای چې هغه ته پخواني جذبات را وګرځوي.

ملګري یې وایي، چې د هغه جګړه پای ته ورسېده، مجاهد چې کله دا ډول خبرې اوري نو پیکه شي، خو پوهېږي چې تر اوسه پورې هغې موخې ته نه دی

1 - متفق علیه.

رسېدلی چې د رسېدو لپاره يې هڅې کوي، ځکه د الله(ﷻ) د لارې مجاهد ټينګار کوونکی وي او په نيمه لار کې نه درېږي، په داسې حالاتو کې ستر ذات ته دعا کوي، لمونځ کوي او په نتيجه کې يې په وړاندې يوه بله داسې دروازه پرانيستل کيږي، چې ډېر کم اميد يې لري.

مجاهد ته توصيه کيږي، چې بايد په جام کې توفان راولاړ نه کړي، ځکه خو هېڅکله هم د تکليفونو او سختيو په اړه مبالغه نه کوي، بلکې هر کله د اړتيا په اندازه غلی او ارام وي.

هېڅکله هم د بل چا د رېړ او ځور په اندازې پسې نه ګرځي، کېدای شي د هغه په وړاندې ځينې بابيزه او غير مهم شيان د يو اور د تيلي کار وکړي، هغه مايوسي او نا اميدي چې د يو مجاهد د ورور (بل مجاهد ) په روح کې راټوله شوې وي ماته او وچاودېږي، يو مجاهد د خپل دوست او ملګري د ځور او کړاو احترام کوي او د هغه کړاوونه له خپلې خواشينۍ سره نه پرتله کوي، ځکه چې د هر چا خپل خفګان دی (هر سړی د خپل غم جام لري).

ډېر کرته له بابيزه او کم ارزښته مسئلو ځورېږي، ډېر ځلې دا ډول فکرونه خورا واړه او بې معنا وي او ډېر ځل مجاهد فکر کوي چې دا فکرونه د پرمختګ وړ نه دي، ډېر کرته باوري شي چې دوی د شفقت، ملاتړ او د معجزو وړ نه دي او ډېر ځلې په خپل ځان باور نه لري.

دوی ويښې شپې سبا کوي او د يو ناوړه عمل له کولو څخه ځورېږي، خو مجاهد هر وخت قوت او اطمئنان په لمانځه کې لټوي او ترلاسه کوي يې.

کله چې د مجاهد په حق بې انصافي وشي د يوازيتوب کوښښ کوي او په دې توګه هېڅوک هم د هغه ځور نه شي ليدلای، خو دا ډول کړنه ښې او بدې دواړه خواوې لري.

که له يوې خوا د هغه زړه په خپله درمل مومي، زخمونه يې راټولېږي، ټکورېږي او جوړېږي، خو له بلې خوا هغه خپله ټوله ورځ په ژورو سوچونو کې



تېروي او په دې وېره کې وي چې کمزوري يې هر چاته څرګنده شوه.

کله چې هم دا ډول حالات رامنځ ته شي، نو مجاهد چوپتيا او يوازې والی غوره کړي، خپل وخت او توان په خبرو نه ضايع کوي، ځکه چې په خبرو هېڅ مرسته نه شي تر لاسه کولای، غوره دا ده چې خپل توان د مقاومت لپاره زېرمه کړي، خپل ځان د زغم او صبر په وسله سمبال کړي او په ذهن کې وساتي چې:

"الله(ﷻ) ويني چې ته په بې انصافۍ سره ځورول کېږې او په دې توګه دې ازمايي.

مجاهد همېشه وايي: ای الله(ﷻ) ! ته هر څه وينې، هر څه ستا د رضا لپاره دي، زما انعام او بدله ستا سره ده، بيا نو الله(ﷻ) مجاهد ته هغه څه ورکوي چې زياته اړتيا ورته لري، په پای کې به، ژر يا وروسته، هر څه د هغه په ګټه راوڅرخي، که چېرته صبر وکړي.

# ستونزې

الله تعالی(ﷻ) فرمايي:

﴿وَلَنَبْلُوَنَّكُمْ بِشَيْءٍ مِنَ الْخَوْفِ وَالْجُوعِ وَنَقْصٍ مِنَ الْأَمْوَالِ وَالْأَنْفُسِ وَالثَّمَرَاتِ وَبَشِّرِ الصَّابِرِينَ﴾[1]

ژباړه: (او مخامخا موږ تاسې په وېرې، لوږې، د مالونو په کمښت او نفسونو په کموالي (مړګونو) له جملې په يو څه ازمايو، او زېرى ورکړئ صبر کوونکو ته (په جنت سره).

کله کله مجاهد د خوب لپاره ځای نه مومي، د خوراک لپاره خواړه نه مومي، وسله او جنګي توکي ورسره نه وي، کله پرې ناروغي غلبه وکړي په داسې حال کې چې هلته پوره روغتيايي اسانتياوې نه وي، خو هغه په خپل زړه کې وايي:

"هېڅ پروا نه کوي، دا زما د دندې يوه برخه ده، زه هيچا هم په دې لار د تګ لپاره نه يم مجبور کړى او دا هغه څه دي، چې ما يوازې او يوازې په خپله اراده غوره کړي دي". دا هغه جملې دي چې د مجاهد ټول توان او طاقت پکې نغښتى، ځکه هغه دا لار په خپله غوره کړې، اوس نو په دې لار کې هېڅ داسې څه نه شته چې ورڅخه شکايت وشي او نه داسې څوک شته چې هغه ته شکايت وکړای شي.

د الله نبي (صل الله عليه وسلم) فرمايلي:

﴿عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا أَرَادَ اللَّهُ بِقَوْمٍ خَيْرًا ابْتَلاهُمْ﴾[2]

[1] - البقرة:١٥٥

[2] - البخاري ، الترمذي.



ژباړه: (انس(رضی الله عنه) وايي چې رسول الله(صل الله عليه وسلم) فرمايلي: کله چې الله تعالی(ﷻ) کوم قوم ته د خېر اراده وکړي، په ازمېښت کې يې واچوي).

مجاهد د رسول الله(صل الله عليه وسلم)د ترور بي بي صفيه(t) ثبات او ټينګار ته حيران او ورڅخه اغېزمن وي، هغه(t) د لومړنيو هغو اتو مسلمانو مېرمنو له جملې وه، چې د الله(ﷻ) په لار کې يې جګړه او جهاد کولو او له اسلام څخه يې دفاع کوله، د احد په جګړه کې يې ګډون وکړ، له رسول الله(صل الله عليه وسلم)يې په مېړانې سره دفاع کوله، د جګړې له پای څخه وروسته يې خپل ورور حضرت حمزه(رضی الله عنه) شهيد وليد، په داسې حال کې چې سينه يې څيرې شوې او مثله شوی و، خو هغې وويل:

"دا هر څه د الله(ﷻ) په لار کې وو، په خدای قسم، دا هر څه نه شي کولای ما د الله(ﷻ) په لار کې له ثبات څخه را وګرځوي او کېدای شي الله تعالی(ﷻ) حمزه(رضی الله عنه) ته له هغه حالته چې اوس په کې و ښه بدله ورکړي".

# زیرکتیا

الله تعالی(ﷻ) په خپل سپېڅلي کتاب کې فرمايي:

﴿ادْعُ إِلَى سَبِيلِ رَبِّكَ بِالْحِكْمَةِ وَالْمَوْعِظَةِ الْحَسَنَةِ وَجَادِلْهُمْ بِالَّتِي هِيَ أَحْسَنُ إِنَّ رَبَّكَ هُوَ أَعْلَمُ بِمَنْ ضَلَّ عَنْ سَبِيلِهِ وَهُوَ أَعْلَمُ بِالْمُهْتَدِينَ﴾(1)

ژباړه: (بلنه ورکوه (ای محمده !) د خپل رب لارې ته په حکمت او ښې موعظې سره، له دوی سره په ډېرې ښې طريقې مباحثه کوه. بې شکه ستا رب پر هغو کسانو چې د هغه (الله) له لارې بې لارې شوي او پر هغو خلکو چې لار يې موندلې ده ښه عالم دی).

رسول الله(صل الله عليه وسلم) فرمايلي دي:

﴿عَنْ شَدَّادِ بْنِ أَوْسٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْكَيِّسُ مَنْ دَانَ نَفْسَهُ وَعَمِلَ لِمَا بَعْدَ الْمَوْتِ وَالْعَاجِزُ مَنْ أَتْبَعَ نَفْسَهُ هَوَاهَا وَتَمَنَّى عَلَى اللَّهِ عَزَّ وَجَلَّ﴾(2)

ژباړه: (د شداد بن الاوس(رضی الله عنه) څخه روايت دی چې رسول الله(صل الله عليه وسلم) فرمايلي دي: عاقل هغه ځوک دی، چې له خپل ځان سره حساب وکړي او له مرګ وروسته ژوند لپاره کار وکړي او عاجز هغه ځوک دی، چې د خپلو نفسي خواهشاتو پيروي کوي او بيا له الله تعالی(ﷻ) هيله او اميد ساتي).

الله تعالی موږ ته د ځينې شيانو په مقابل کې ځينې نور راکړي، څو زده کړې ورڅخه وکړو، پس مجاهد له ډېر پخوا څخه زده کړي چې الله(ﷻ) انسان ته

---

[1] - النحل:١٢٥

[2] - الترمذي.



يوازې والی د ټولنيز ژوند د هنر د زده کړې لپاره ورکوي، الله تعالی(ﷻ) غوسه پيدا کړې، څو موږ د زړه سوي او صبر د نه ختمېدونکي نعمت په خوند او ارزښت پوه شو، هغه سترېا پيدا کړې د دې لپاره چې د کار او خوارۍ په معنا پوه شو، لوی ذات چوپتيا پيدا کړې، څو د خپلو خبرو د هر توري د مسئوليت په اندازه پوه شو، زړه تنګي يې رامنځ ته کړې څو د خطراتو او قربانۍ په مطلب پوه شو، ناروغي يې پيدا کړې، چې د بشپړې روغتيا په مزه پوه شو.

له اور سره الله(ﷻ) موږ ته د اوبو فکر راوړاندې کوي، له ځمکې او خاورې سره دا راښيي چې هوا څه شی دی او له مرګ سره الله(ﷻ) موږ ته روښانه کړې چې ژوند څومره مهم دی.

مجاهد د نورو پر پرېکړو له نيوکو سره خپل وخت نه ضايع کوي، هغه پوهېږي چې مهم شيان پاتې کېږي او بې ګټې څيزونه له منځه ځي، د دې لپاره چې په خپله لار باور پيدا کړي د دې اړتيا نه ليدل کېږي چې ثابته کړو يو بل چا ناسمه لار انتخاب کړې.

يو چينايي فيلسوف(Lao-Tse) (1) ويلي دي:

"د جنګيالي په لار کې هر کوچنی او کمزوری شی د احترام وړ وي، ځکه خو د تل لپاره د هغې لحظې د نيولو کوښښ کوه چې ته په کې بايد يو مناسب قدم پورته کړې، ولو که ته د غشي ويشتلو په هنر کې ښه رسېدلی يې بيا هم له نژدې ګوره چې څه ډول غشی ړدې او څه ډول لينده کش کوې.

يوه وروستۍ شننه څرګندوي، يو ناپوه انسان چې د خپلو غوښتنو په اړه بشپړه پوهه لري، له هغه پوه او زيرک انسان څخه عاقل خيژي چې ذهن يې غير حاضر وي.

---

[1] - Lao-Tse يو چينايي فيلسوف دی، چې په ٦٠٤ قبل الميلاد کې زېږېدلی، يو شمېر کتابونه يې ليکلي او د يو شمېر نظريو وړاندې کوونکی ستر مفکر بلل کېږي.

له خپل ځان سره په مینه ترکیز کول د خوشحالۍ معنا لري، خو په خپل ځان کې په کرکه او نفرت زور راوړل بدلون او نسکوریدنه له ځانه سره لري.
ځوک چې د سختیو تشخیص نه شي کولای، هغه دروازه پرانیستې پریږدي او په دې سره ناورینونه رامنځ ته کوي، جنګیالی باید وپوهېږي چې جګړه محض شخړې ته نه ویل کیږي".
باید وپوهیږو چې شته عادتونه د یو مهم قدم د اخیستلو تعیین نه شي کولای، مجاهد د یو بل حکیم دا خبرې یادې لري چې وایي:
"د هغه کارونو پایلې چې موږ یې کوو د ډارنو لپاره حیرانوونکې، خو د هوښیارانو لپاره د رڼا د وړانګو په څېر دي، د نړۍ مخ د سترنج د تختې په څېر دی، ګوټکی زموږ ورځني کارونه دي، د لوبې امر د طبیعت قانون دی، موږ هغه څوک نه وینو، چې موږ وسره لوبه کوو، بلکې موږ پوهیږو چې هغه عادل، صبرناک او ریښتینی دی".
مجاهد له دې خوند اخلي چې له الله تعالی(ﷻ) سره لاسلیک کړي تړون په بشپړه توګه تر سره کړي، پوهېږي چې الله(ﷻ) د هغه چا تېروتنې له منځه نه وړي چې مینه ورسره لري او هغه څوک چې غوره کړي یې دي له دې تړون څخه ناخبره نه پرېږدي.
مجاهد همېشه عاقل او ځیرک وي، هېڅکله هم د خپلو ناکامیو په اړه خبرې او یادونه نه کوي، بلکې زده کړه ورڅخه کوي او له همدې امله ورته بیا بیا مراجعه کوي.



# خطرونو کې لوېدل

الله تعالی(ﷻ) په خپل سپېڅلي کتاب کې فرمایي:
﴿لَوْ كَانَ عَرَضًا قَرِيبًا وَسَفَرًا قَاصِدًا لَاتَّبَعُوكَ وَلَكِنْ بَعُدَتْ عَلَيْهِمُ الشُّقَّةُ وَسَيَحْلِفُونَ بِاللَّهِ لَوِ اسْتَطَعْنَا لَخَرَجْنَا مَعَكُمْ يُهْلِكُونَ أَنْفُسَهُمْ وَاللَّهُ يَعْلَمُ إِنَّهُمْ لَكَاذِبُونَ﴾[1]
ژباړه: (که چېرته مال نږدې وای او سفر اسانه، نو خامخا به یې ستا تابعداري او پیروي کړې وه، مګر د دوی لپاره دغه مسافه لرې ده او ژر دی چې قسمونه وکړي منافقان په الله(ﷻ) که چېرته مو (د سفر) توان درلودای نو تاسې سره به وتلي وای، دوی خپل ځانونه "د دروغو په ویلو سره" هلاکوي او بې شکه الله تعالی(ﷻ) پوهېږي چې دوی دروا غجن دي).
مجاهد په بشپړه توګه، په پوره زیرکتیا او دقت سره د برید د هدف څېړنه کوي ولو که هدف ته رسېدونکې لار خورا ستونزمنه وي، ځکه دا سې لارې او چلونه موجود دي چې له مخې یې په دې سختیو بریالیتوب موندلای شي.
مجاهد هېڅکله هم خپل چار چاپېره لارو ته نه ګوري، خپله توره تېره ساتي،

[1] - التوبة:٤٢

په داسې حال کې چې زړه یې ثابت او ډاډه وي، ځکه له ډاډ پرته هېڅوک هم د جګړې ډګر ته نه شي داخلېدلای، خو کله چې هغه مزل پیل کړي، نو پوهېږي چې په دې لار کې سختۍ شته او داسې موانع موجود دي چې امید یې نه درلود. که چېرته هغه د یو مناسب وخت د راتګ لپاره انتظار باسي، نو هېڅکله به هم پرمختګ پیل نه کړي او نه به یو قدم مخکې ولاړ شي.

د لومړي قدم د پورته کولو لپاره څه ناڅه جنون هم په کار دی او مجاهد باید له دغه جنون څخه کار واخلي، مجاهد ته پکار دي چې ځان فرصت او مناسب وخت ته په خپله ورمخکې کړي او مناسب وخت په خپله وزېږوي، ځکه ناشونې ده چې هر څه له وړاندې څخه تخمین کړي او په ځانګړې توګه د جګړې پر مهال.



# استقامت

الله تعالی(ﷻ) فرمايي:

﴿مِنَ الْمُؤْمِنِينَ رِجَالٌ صَدَقُوا مَا عَاهَدُوا اللَّهَ عَلَيْهِ فَمِنْهُمْ مَنْ قَضَى نَحْبَهُ وَمِنْهُمْ مَنْ يَنْتَظِرُ وَمَا بَدَّلُوا تَبْدِيلًا﴾[1]

ژباړه: (ځینې له مؤمنانو هغه سړي دي چې له الله(ﷻ) سره یې کړې وعده ریښتیا کړې ده (په ثبات او په جنګ کې په استقامت سره) د دوی له جملې ځینو خپل نذر پوره کړ (شهیدان یا مړه شول) او ځینې نور انتظار باسي، دوی کړې ژمنه بدله کړې نه ده).

مجاهد د خپلې کمزورۍ او قوت نقطې پېژني، کېدای شي ځینې شکایت کوي او وایي "له موږ سره هېڅ فرصت نه شته"، شونې ده د هغوی وینا سمه وي، خو مجاهد په دا ډول خبرو خپل ځان نه نهیلی کوي، بلکې خپل ټول توان، وړتیا او هر هغه څه مصرفوي، چې په واک کې یې وي.

د مؤته [2] د غزا د یو ګډون کوونکي صحابي هغه خبره یاده لري، چې ویلي دي: "قسم په خدای(ﷻ) موږ په خپل شمېر او وسایلو جګړه نه کوو، بلکې موږ په خپله عقیده جنګیږو، نو د الله(ﷻ) په لار کې ځئ، یو له دوو څخه ستاسې لپاره دی، یا بری او یا شهادت".

مجاهد هېڅ یوه ځانګړې نقشه نه لري، هر څه مهم او قطعي وي او هر څه د هغه په وړاندې احترام لري، داسې نه ده چې مجاهد په خپل کور کې ناست او

---

1 - الاحزاب:۲۳

2 - د مؤته غزا د شام د بلقاء په سیمه د روم د قیصر د والي سره شوې وه، باید وویل شي چې د مؤته په غزا کې د مسلمانانو شمېر درې زره تنه و، خو د کفارو شمېر دوه سوه زره تنه و.

یوازې روان حالات ښاري، بلکې هغه د نړۍ ګردې ننګونې قبلوي، مقابله یې کوي او د خپل بدلون فرصت او موقع په کې ګوري.
کېدای شي د مجاهد ځینې ملګري شکایت کوي، چې په ژوند کې کوم انتخاب نه لري او یا به یوازې د هغو پرېکړو په اړه بحث کوي، چې نورو کړې دي، خو مجاهد خپلو افکارو ته د عمل جامه ور اغوندي.
که یو مجاهد خپله موخه په نامناسب ډول غوره کړي، نو بې له شکایته د خپل ناسم انتخاب سزا ګالي، داسې هم پېښې شي چې هغه په ناسمه لار رهي شي او د هغې لارې سر ته له بېرته راګرځېدو وړاندې زیات لالهانده شي، چې له کبله یې مجاهد په غلطه لار روان شوی، خو دا د دې معنا نه لري، چې مجاهد دې خپله غوره کړې لار پرېږدي.





الله تعالی(ﷻ) فرمايي:
**﴿فَاسْتَجَابَ لَهُمْ رَبُّهُمْ أَنِّي لَا أُضِيعُ عَمَلَ عَامِلٍ مِنْكُمْ مِنْ ذَكَرٍ أَوْ أُنْثَى بَعْضُكُمْ مِنْ بَعْضٍ فَالَّذِينَ هَاجَرُوا وَأُخْرِجُوا مِنْ دِيَارِهِمْ وَأُوذُوا فِي سَبِيلِي وَقَاتَلُوا وَقُتِلُوا لَأُكَفِّرَنَّ عَنْهُمْ سَيِّئَاتِهِمْ وَلَأُدْخِلَنَّهُمْ جَنَّاتٍ تَجْرِي مِنْ تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ ثَوَابًا مِنْ عِنْدِ اللَّهِ وَاللَّهُ عِنْدَهُ حُسْنُ الثَّوَابِ﴾**[1]
ژباړه: (پس رب د دوی دعاوې قبولې کړې (په دې ډول چې) بې شکه زه ستاسې له منځه د هېڅ عمل کوونکي عمل نه ضایع کوم، که هغه نارینه وي او که ښځینه، ځکه چې ځینې ستاسې له ځینو نورو څخه دي (ټول په ثواب او عقاب کې برابر دي)، د هغو کسانو لپاره چې هجرت یې کړی، له خپلو کورونو ایستل شوي، زما په لار کې ورته ضرر رسول شوی، جنګونه یې کړي او وژل شوي دي، خامخا به ترې ګناهونه ورژوم، خامخا به یې هغه جنت ته داخل کړم چې د ماڼیو او ونو لاندې یې ویالې بهیږي، دا د الله(ﷻ) له لوري ثواب دی، د الله(ﷻ) سره ښه ثواب او نېکه بدله شته).
مجاهد هېڅکله هم له خپلې پرېکړې نه وروسته کېږي او نه یې په اړه خپله رایه بدلوي، په هر کار کې له پیله د مخه فکر او غور کوي ، په هکله یې اوږد سوچ او د خپل چمتوالي کتنه کوي، د خپل مسئولیت، دندې او هغه څه په اړه چې باید تر ټولو د مخه یې تر سره کړي اندازه معلوموي، د هر قدم او پروګرام په اړه چې نیت یې لري څېړنه کوي، کله چې د چوپ پاتې کېدو کوښښ کوي په صداقت سره خپل هر ګام ښاري، په داسې توګه لکه هر څه چې په همده پورې

[1] - ال عمران: ۱۹۴

ترلي او په همده متکي وي، د همدې لپاره د استخارې لمونځ کوي او له الله تعالی(ﷻ) څخه د هدایت غوښتنه کوي.

د يو کار د کولو په اړه د پرېکړې پر مهال مخ پر وړاندې ځي او شاته نه ګوري، د خپلې پرېکړې د سموالي په اړه نه شکمن کيږي، که چېرته يې له توقع خلاف څه پېښ شي يعنې پايلې يې له هيلو سره سمې نه وي بيا هم يو رښتينی مجاهد له خپلې غوره کړې لارې څخه نه ګرځي، بلکې په خپلو ټولو کارونو کې په الله تعالی(ﷻ) توکل کوي.

که چېرته يې پرېکړه سمه وي، نو د الله(ﷻ) په مرسته به يې په جګړه کې بری په برخه شي اګر که د جګړې موده تر اټکل زياته اوږده شي او که چېرته د هغه پرېکړه ناسمه وي، نو کېدای شي هغه له ناکامۍ سره مخ او بيا له سره پيل وکړي، خو د ماتې او ناکامۍ پر مهال يو مجاهد له خپلو تېروتنو زده کړه کوي او د بيا پيل پر مهال به د خپلو تجربو په وسله سمبال وي، چې د همدې زده کړو پايله به د هغه د عزم او ټينګار په اندازه له غوښتنې سره سمه وي.

مجاهد د يوې پناه ګاه، سرپناه او غرګي په توګه وي، کله چې يو غر په هواره ځمکه ولاړ وي، نو هر څه ورسره خوښ او خوشحاله وي او دی په خپل حال ثابت پاتې کيږي، کېدای شي يو شمېر خلک يې په سيوري کې خپل کورونه اباد کړي چې هغوی ته له هر ډول ويجاړوونکي توفان څخه پناه ورکوي، خو که چېرته دغه غرګی د يوې غونډۍ مخ په ځوړ حالت کې وي، نو ځلور خواوې به يې هېڅ د توازن او پاملرنې څخه برخمنې نه وي، مجاهد هم دا ډول وي، چې بايد په دوهم حالت کې خپل ځواک ځرګند کړي او پر دښمن بريد وکړي، پر هغه دښمن چې غواړي امنيت له منځه يوسي، په داسې وخت کې مجاهد زيات زيان



رسوونکی او وژونکی وي او هېڅوک د هغه مخه نه شي نيولای[1].

د دې خبرې د ثبوت لپاره تر ټولو ښه مثال د هغو ځلور سوه تنو صحابه و عمل دی چې د کافر مسيلمة الکذاب پر ضد يې د جګړې په سختو حالاتو کې تر مرګه د جنګېدو سوګند وکړ.

همدا ډول مجاهد په هر ډول حالاتو کې ثابت قدم پاتې کيږي، د جګړې په ډګر کې تر ټولو زياته قرباني د خپل ځان ورکوي.

همدغه حالت هغه مهال هم و کله چې حضرت ثابت د خپل بدن په ټپونو وښلنی (درد غلی کوونکی نبات) کېښود ، خپل ځان يې په کفن کې تاو کړ او خلکو ته يې خطبه (تقرير) پيل کړه، ويې ويل: "ای مسلمانانو ! ايا د انبياء او رسولانو په زمانه کې، کله چې موږ د الله(ﷻ) له دښمنانو سره جګړه کوله زموږ همدا حال نه و ، ما ډېر خفه کوي، چې وينم د الله(ﷻ) دښمنان په پوره زړورتيا پر تاسې بريدونه کوي، ما ډېر خفه کوي، چې زه د هغوی په سبب تاسې په کړاو کې او ماتې خوړلې وينم".

په دې وخت کې يې سترګې اسمان ته پورته کړې او الله(ﷻ) ته يې دعا پيل کړه : "ای زما ربه ، زه په يوازې ځان نه شم کولای د دښمن دغه تېری چې هغوی يې د اسلام او د اهل اسلام پر ضد کوي دفعه کړم ، زه د مسلمانانو په خپل منځ کې د مشاجرې او جګړې په اړه هم څه نه شم کولای ".

[1]- دغه فقره خورا منطقي بريښي او د پوهېدو لپاره زيات فکر ته اړتيا لري ، ليکوال مجاهد ته توصيه کوي، چې بايد په سختۍ او خواشينوونکو حالاتو کې له استقامت څخه کار واخلي ، هسې خو په ارامه فضا او هموار حالت کې يو بې روحه غر هم ګټه رسوونکی وي، خو مجاهد هغه څوک دی چې ځواک يې په سختو حالاتو کې ځرګند شي او ګټه رسوونکی شي.
همدا راز ليکونکی مجاهد ته په داسې يو حالت کې د اقدام کولو نتايج هم په ډاګه کوي. يعنې که بريد وکړي، نو دښمن ته به پرېکنده ماتې ورکړي، راتلونکې څو کرښې او حضرت ثابت د کيسې په لوستلو سره د لومړۍ فقرې غموض او ابهام له منځه ځي.(ژباړن)

خو حضرت ثابت له يو شمېر نورو صحابه کرامو او مسلمانانو لکه البراء بن مالک ، زيد ابن الخطاب سره يو ځای د يو قهرجن زمري په توګه په دښمن ورټوپ کړ، چې په پای کې دغه جګړه د همدوی په بري پای ته ورسېده او دښمن مات شو.

همدا سبب دي چې مجاهد هېڅکله هم پر دښمن د خپلې تورې د برید اجازه له بل چا ځنې نه اخلي، بلکې بې له شک او دوه زړه توبه خپله توره پورته کوي او له خپل دښمن سره په خپل لاس جګړه کوي.

په همدې ډول يو مجاهد هېڅکله هم د خپلو کارونو او پروګرامونو په تشريح وخت نه ضايع کوي ، بلکې په هغه څه باندې ايمان لري چې الله تعالی(ﷻ) ورته په تقدير کې ټاکلي دي ، هغه پوهېږي چې د خپلو کارونو په هکله ورڅخه پوښتنه کېږي او د خپلو ټولو تصرفاتو مسئول دی.

الله عزو جل فرمايي:

**﴿وَلَمَنْ صَبَرَ وَغَفَرَ إِنَّ ذَلِكَ لَمِنْ عَزْمِ الْأُمُورِ﴾**[1]

ژباړه: (او چا چې صبر وکړ او بښنه يې وکړه، بې شکه چې دغه (صبر او بښنه) له غوره کارونو ).

مجاهد په يو وخت کې د جګړې او سولې دواړو په هکله فکر کوي، په دې توګه کولای شي چې د حالاتو له څرنګوالي سره سم اقدام وکړي ، په هر حال کې د حالاتو له غوښتنې سره سم تصرف کوي او کله چې مجاهد جهاد خپله لار غوره کړي، نو بيا تر پايه پورې پر دې لار ځي او شعار يې دا وي چې "بری او یا جنت".

1 - الشوری:۴۳



# ملګرتيا

الله تعالی(ﷻ) فرمايي:

**﴿إِنَّمَا الْمُؤْمِنُونَ إِخْوَةٌ فَأَصْلِحُوا بَيْنَ أَخَوَيْكُمْ وَاتَّقُوا اللَّهَ لَعَلَّكُمْ تُرْحَمُونَ﴾**[1]

ژباړه : (بې شکه چې ټول مؤمنان سره په خپلو کې وروڼه دي، نو د خپلو وروڼو تر منځ سوله کوئ او له الله تعالی(ﷻ) ووېرېږئ، ښايي چې پر تاسې رحمت وکړای شي).

د اسلام پاک پیغمبر(صل الله عليه وسلم) فرمايلي دي:

**﴿عَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ رَدَّ عَنْ عِرْضِ أَخِيهِ رَدَّ اللَّهُ عَنْ وَجْهِهِ النَّارَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ﴾**[2]

ژباړه: (ابو درداء(رضی الله عنه) د رسول الله(صل الله علیه وسلم) څخه روايت کوي چې هغه فرمايلي: څوک چې د خپل ورور له غيبته منعه شي، الله تعالی(ﷻ) به د قيامت په ورځ د هغه له مخه اور منعه کړي).

مجاهد پوهېږي چې ښه روزونکي او بهتر ښوونکي هغه مجاهدين وروڼه دي له چا سره چې د جګړې ډګر ته ځي، ځکه خو د اړتيا او مرستې پر مهال او سختيو شېبو کې تر ټولو دمخه د ملګرو چلند ته ګوري چې څه کوي؟ د جذباتو او احساساتو د لټون لپاره مجاهدينو ته نژدې کېږي او د خپل ملګري شونډې لولي، د ساتونکو ملايکو کلمو ته غوږ نيسي چې څه ورته وايي.

کله چې ستړی او يوازې وي، نو خپل فکر له ځانه لرې کسانو ته نه وړي، بلکې د هغه چا لټون کوي، چې تر ټولو ورته نژدې وي، له هغوی سره خپلې تلوسې

1 - الحجرات:۱۰

2 - سنن الترمذي.

او غوښتنې شریکوي، د هغوی د پوهونې کوښښ کوي او په دې توګه خوښې ترلاسه کوي.

کله چې مجاهدین له لښکرکوټ څخه بهر اور ته راټول شي، بیا یو پر بل ملامتیا نه اچوي یو پر بل تورونه نه لګوي، له یوې کیږدۍ لاندې راټولیږي او تېروتنې هېروي.

کله کله له جهادي ډلګیو سره نوي او مبتدئین مجاهدین یو ځای کیږي، هغوی د پخوانیو مجاهدینو په نسبت پېژندل شوي او مشهور خلک نه وي، له همدې کبله کله چې هغوی خپلې وړتیاوې او مهارتونه څرګند کړي، نو ځینو پخوانیو مجاهدینو ته د ښوونکو په توګه برېښي.

په هر حال، حقیقي مجاهد د نوي مجاهد او د پخواني باتجربه او پوه مجاهد تر منځ پرتله نه کوي، بلکې همېشه هغوی ته ښه راغلاست وایي، پر هغوی هغه مهال باور کوي چې یې د ځواکمنۍ او کمزورۍ نقطې معلومې کړي، دا ځکه چې په جګړه کې د داخلېدو پر مهال یو مجاهد کوښښ کوي، د خپلو ملګرو او وسلو د وړتیاوو په اړه ځان پوه کړي او د هر یو د توان اندازه معلومه کړي.

مجاهد تل خپلو ملګرو مجاهدینو ته نژدې وي، خو په ورته وخت کې د هغوی لارښود هم وي او په خپله د وسلو تمرین هم کوي چې په دې توګه د مجاهدینو په منځ کې هغه ستوري ته ورته وي، چې خپل ګرد چاپېره ستورو او د اسمان افق ته رڼاوې ورکوي، خپله برخه نړۍ رڼا کوي، کله چې هم څوک اسمان ته وګوري د هغه د رڼا له کبله کولای شي، نورې لارې او کاینات ووینې.

مجاهدین ټول په اسمان کې د ځلانده ستورو په څېر دي، یو په بل پسې د خپل لارښود خوا ته راټولیږي او په شریکه سره د ستورو د یوې غونچې او کهکشان ښه غوره کوي، ځکه مجاهد پوهېږي چې په اسمان کې تر ټولو لرې ستوري د نورو ستورو د وجود له کبله منځ ته راځي.

مجاهد به د خپل ټینګار، عزم او استقامت په برکت د ټولو سختیو مېوه ګوري.



# سخاوت

حضرت محمد (صل الله علیه وسلم) فرمایلي:

﴿عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَيْسَ الْغِنَى عَنْ كَثْرَةِ الْعَرَضِ وَلَكِنَّ الْغِنَى غِنَى النَّفْسِ﴾[1]

ژباړه : (ابو هریرة(رضی الله عنه) فرمایي رسول الله(صل الله علیه وسلم)فرمایلي چې حقیقي بډایتوب د مال او متاع د ډېروالي نه، بلکې حقیقي بډایي د نفس ده).

مجاهد خپل تر ټولو ښه شته یو اړ او محتاج ته وړاندې کوي، مجاهد سخي او د ورکړې خاوند وي، خپل شا او خوا هر وګړي ته د مرستې د لاس ورغزولو کوښښ کوي. په لوی زړه، پوره اخلاص او سخاوتمندۍ سره کوښښ کوي ټولې نړۍ ته څرګنده کړي، چې هر انسان د یو څه کولو توان او وړتیا لري.

کېدای شي د مجاهد ځینې ملګري، ملاحظه کړي چې خلک ناشکره دي، خو مجاهد په دې ډول خبرو نه سربداله کیږي.

مجاهد په پوره باور او بشپړ انډول خبرې کوي، په لښکرکوټ کې له خپلو مجاهدینو ورونو سره د یو ځای کېدو پر مهال هغوی تشویقوي، کار ته یې هڅوي او په دې ډول کوښښ کوي چې خپل ځان هم په کار راولي.

مجاهد په سمه او د حق په لار کې د خپل توان او علم په اندازه له نورو سره ګډون کوي او د اړو خلکو مرسته کوي.

رسول الله(صل الله علیه وسلم) فرمایلي دي:

﴿عَنْ أَبِي أُمَامَةَ عَنْ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ لَمْ يَغْزُ أَوْ يُجَهِّزْ غَازِيًا أَوْ

[1] -صحیح مسلم

**يَخْلُفْ غَازِيًا فِي أَهْلِهِ بِخَيْرٍ أَصَابَهُ اللَّهُ بِقَارِعَةٍ قَالَ يَزِيدُ بْنُ عَبْدِ رَبِّهِ فِي حَدِيثِهِ قَبْلَ يَوْمِ الْقِيَامَةِ﴾**[1]

ژباړه: (ابو امامة(رضی الله عنه) له رسول الله(صل الله علیه وسلم) اوریدلي چې هغه فرمایلي دي: څوک چې غزا ونه کړي، نه غازي سمبال کړي او نه د غازي د کورنۍ ښه سرپرستي وکړي، هغه ته به قارعة (ستر مصیبت) ورسیږي) یزید بن عبد ربه(رضی الله عنه) په خپل روایت کې دا لفظ هم زیات کړی دی چې (دغه قارعه به ورته د قیامت له ورځې مخکې ورسیږي".

مجاهد د نورو پوهول خپله دنده بولي، کله چې له خپلو مجاهدینو ورونو سره په یوه غونډه کې کېني هغوی ته د جګړې د ډګر پېښې بیانوي، که چېرته هغوی پوښتنه وکړي چې ولې خپل ستراتیژیک اسرار او رازونه ښکاره کوي؟ ایا نه پوهیږې چې په دې سره ګواښ رابولي؟ او دښمن ته د ګټې چانس ورکوي؟

نو د هغه ځواب یوازې یوه خندانه خوله مسکا وي، خو په ژبه هېڅ هم نه وایي، ځکه پوهېږي، چې په پای کې به هغه د جنت په ګټلو بریالی شي او له دې وروسته به په یو ابدي راحت ارام شي، چې بیا به ازاد وي، یعنې بیا به جهاد پای ته رسېدلی وي.

1 - سنن ابي داؤد



# لمونځ

الله(ﷻ) فرمایلي:

**﴿وَلَقَدْ تَرَكْنَا مِنْهَا آيَةً بَيِّنَةً لِقَوْمٍ يَعْقِلُونَ﴾**[1]

ژباړه: (خامخا مو (له هغې قریې او ښاره) د هغه قوم او خلکو لپاره چې عقل لري او عبرت تري اخلي یوه ښکاره نښه پرېښوده).

مجاهد د خپل ځان لپاره هم وخت ته اړتیا لري، چې ارام وکړي او دغه وخت په فکر، سوچ او د الله تعالی(ﷻ) په عبادت کې تېر کړي، تر دې چې هغه د جګړې په سور اور کې هم لمونځ اداء کوي او د الله(ﷻ) ذکر کوي.

لمونځ په دوه ډوله دی:

لومړی:

هغه لمونځ چې کله انسان له خپل رب څخه په ژوند کې څه ځانګړې غوښتنې کوي او د دې لپاره چې وپوهېږي څه باید وکړي د استخارې لمونځ اداء کوي.

خو د الله تعالی(ﷻ) د کارونو لپاره ځانګړې موده نه ده ټاکل شوې، الله تعالی(ﷻ) زموږ (انسانانو) په خیر تر ټولو ښه پوهېږي او استخاره کوونکي ته پاملرنه نه کوي، هغه څه تر سره کوي، چې هغه ذات یې اړین بولي، که څه هم لمونځ کوونکی فکر کوي چې ګوندې د هغه لمونځ او دعا نه ده قبوله شوې.

دوهم:

کله چې یو څوک نه پوهېږي الله تعالی(ﷻ) به ورته په دوه لارو کې کومه اسانه کړي، د الله تعالی(ﷻ) د ځواب انتظار باسي، څو د هغه په ژوند کې د رب متعال ټولې پرېکړې عملي شي، له الله تعالی(ﷻ) څخه د ستونزو د حل، د سر خوږي او ځور د پای ته رسېدو سوالونه کوي، له خپل رب څخه د شجاعت،

1 - العنکبوت_۳۵

مېړانې او په جګړه کې د اقدام او پیل غوښتنې کوي، همدغه د مجاهد د لمونځ او دعا طریقه ده.

کله داسې وخت هم راځي، چې مجاهد ستړیا او زړه تنګي احساسوي، خو یاد لري چې الله تعالی(ﷻ) ښه مرستندوی دی.

الله تعالی(ﷻ) فرمایلي:

﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِذَا لَقِيتُمْ فِئَةً فَاثْبُتُوا وَاذْكُرُوا اللَّهَ كَثِيرًا لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ﴾[1]

ژباړه: (ای مؤمنانو ! کله چې له (کافرې) ډلې سره ستاسو مقابله راشي نو ثابت قدم اوسئ او الله تعالی(ﷻ) ډېر ډېر یادوئ د دې لپاره چې تاسو بریالي شئ).

کله چې مجاهد دغه وظیفې بیا بیا تکرار کړي، نو لمونځ، ذکر او دعا یې عادت وګرځي، او د تل لپاره په لمانځه او ذکر مشغول وي.

رسول الله فرمایلي:

﴿عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ أَقْرَبُ مَا يَكُونُ الْعَبْدُ مِنْ رَبِّهِ عَزَّ وَجَلَّ وَهُوَ سَاجِدٌ فَأَكْثِرُوا الدُّعَاءَ﴾[2]

ژباړه: (ابو هریرة(رضی الله عنه) فرمایي چې رسول الله فرمایلي: بنده خپل رب ته د سجدې په حالت کې تر ټولو زیات نژدې وي نو په سجده کې دعا زیاتوئ).

مجاهد خپل ځان د لمانځه لپاره وقف کوي، په ورته وخت کې د ټولو هغو څیزونو څخه ځان ساتي، چې فکر یې د شهرت او دنیوي خوندونو لور ته اړوي، په پایله کې د مجاهد روح ارامیږي، د سوکالۍ او اطمئنان احساس کوي.

1 - الانفال_٤٥

2 -صحیح المسلم ، ابو داؤد ، نسائي





الله جل شانه فرمایلي:

﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِنْ تَنْصُرُوا اللَّهَ يَنْصُرْكُمْ وَيُثَبِّتْ أَقْدَامَكُمْ﴾[1]

ژباړه: (ای مؤمنانو ! که د الله(ﷻ)(د دین او رسول سره) سره مرسته وکړئ، نو الله(ﷻ) به تاسې سره مرسته وکړي او د دښمن پر وړاندې په جګړه کې به مو قدمونه ټینګ او محکم کړي).

امام ابن القیم(ρ) فرمایلي:

الله تعالی(ﷻ) مجاهد ته پنځه صفتونه ورکړي، کله چې د مجاهدینو یوه ډله په دې اوصافو وپسولل شي، نو مرسته، سوبه او بری یې په برخه شي، ولو که د هغه په پرتله دښمن د شمېر او اوزارو له پلوه قوي وي.

هغه صفتونه په لاندې ډول دي:

لومړی: ټینګار او ثبات.

دوهم: د الله یادول.

دریېم: الله(ﷻ) او د هغه رسول ته ځان تسلیمول.

څلورم: نظم او د مجاهدینو منځ کې مرسته، په هغه بحثونو کې نه کېوتل چې کمزورۍ ته یې رهي کوي، ځکه چې جګړې او بحثونه مجاهدین کمزوري کوي او دښمن ته یې ځواکمنتیا ورکوي.

تنظیم او نسق داسې مثال لري، لکه د غشو ګېډۍ، کله چې تړلي او یو ځای وي، نه ماتیږي، خو کله چې پرانیستل شي، یو څوک کولای شي همدغه د غشو د نه ماتېدونکې ګېډۍ ټول غشي یو یو او مات کړي.

1 - محمد:٧

پنځم: صبر د ټولو په سر کې ځای لري، صبر دی چې د ستنې او اساس په توګه پېژندل کيږي.
دا هغه پنځه اساسات دي چې سوبه پرې ولاړه ده، که چېرته دغه اوصاف او اساسات ټول او يا له دې يو کم وي، سوبه به د همغې وصف د نشتوالي په اندازه نيمګړې وي.
د رسول الله(صل الله عليه وسلم) صحابه کرامو دغه ارزښتونه درلودل، بلکې هېڅ يوه ټولنه هم د دې اوصافو مخالفت نه شي کولای، همدا لامل دی، چې د رسول الله صلي الله عليه وسلم اصحاب هر مهال او په هر ډګر کې بريالي ول، خو کله چې د دې ارزښتونو ضعف پيل شو، د تنزل لور ته د هر څه تلل هم پيل شول او حالات تر دې بريده ناوړه شول چې زموږ په وړاندې دي.
الله(ﷻ) فرمايلي:
﴿وَلَقَدْ صَدَقَكُمُ اللَّهُ وَعْدَهُ إِذْ تَحُسُّونَهُمْ بِإِذْنِه حَتَّى إِذَا فَشِلْتُمْ وَتَنَازَعْتُمْ فِي الْأَمْرِ وَعَصَيْتُمْ مِنْ بَعْدِ مَا أَرَاكُمْ مَا تُحِبُّونَ مِنْكُمْ مَنْ يُرِيدُ الدُّنْيَا وَمِنْكُمْ مَنْ يُرِيدُ الْآخِرَةَ ثُمَّ صَرَفَكُمْ عَنْهُمْ لِيَبْتَلِيَكُمْ وَلَقَدْ عَفَا عَنْكُمْ وَاللَّهُ ذُو فَضْلٍ عَلَى الْمُؤْمِنِينَ﴾[1]
ژباړه: (په تحقيق سره الله تعالى(ﷻ) تاسې سره کړې ژمنه هغه مهال رښتيا کړه، کله چې تاسې کافران د الله(ﷻ) په حکم سره وژل، تر هغه وخته چې بې زړه شوئ او په خپلو منځونو کې مو د جنګ او جګړې په چارو کې مخالفت پيل کړ، دا کار مو وروسته له دې وکړ چې الله تعالى(ﷻ) تاسې ته هغه څه دروښودل چې ستاسې خوښ وو يعنې مرسته او غنيمت، ځينې له تاسې دنيا خوښوي او ځينې نور اخرت خوښوي، بيا الله تعالى(ﷻ) تاسې وګرځولئ له کافرانو (په

[1] - ال عمران: ۱۵۲



تېښتې سره ) د دې لپاره چې تاسې و ازمايي، او په تحقيق سره الله(ﷻ) تاسې ته ښښنه وکړه او الله تعالى(ﷻ) پر مؤمنانو د لوی فضل څښتن دی ).
د جګړې له پيل سره سم د مجاهد دريځ څرګند وي او وايي: "زه يو ځانګړی هدف او موخه لرم" ډېر کلونه وروسته پوهېږي چې خپل هدف تر لاسه کولای شي او هغه دا چې د همدې کلونو کلونو خوارۍ په بدل کې به ثواب ورکړل شي.
کله کله غمجن شي، له خواشينۍ او يوازيتوب سره مخ شي، ناهيلی شي او د هغه چا له خوا د خيانت او بې باورۍ سره مخ شي چې ډېره ناسته پاسته ورسره لري، له همدې امله هغه يو نااشنا احساس کوي، او داسې ورته برېښي چې ګوندې د خپل کار اهليت نه لري، د خپل هدف د حصول لپاره پوره چمتو نه دی، د هغه زړه وايي چې هر څه پرېږده! خو مجاهد بايد له دا ډول شعوره ځان لرې وساتي او خپل هدف ته د رسېدو لپاره ټول توان په کار واچوي.
الله تعالى(ﷻ) ته په ګونډو کيږي، هغه ته سوال کوي، خپل برياليتوبونه الله تعالى(ﷻ) ته منسوبوي، له دې وروسته له خپل ځانه ساده او بې معنا پوښتنې نه کوي، په ځانګړې توګه د ګناه، نيمګړتياوو او نه چمتوالي د احساس په اړه، ځکه چې دغه احساسات يې په واک کې نه دي او په دې ډول په ټولو ګناهونو بری مومي.
د نړۍ ټولې لارې د مجاهد زړه ته رسيږي، هغه د خپل ژوند په احساساتو کې د ډوبېدو پر مهال له احتياطه کار اخلي، پوهېږي چې په خپل انتخاب کې خپلواک دی، خپلې پرېکړې په مېړانه کوي او شاته نه ګوري.
کله له بيړې هم کار اخلي، خپل جذبات قبلوي، او مېوه يې ريبي، پوهېږي چې هېڅوک بايد د فتحې او برې خوشحالي رد نه کړي، برياليتوبونه د ژوند برخه ده او برياليتوبونه د هغه چا روح دی، چې د خوشحاليو د تر لاسه کولو لپاره کوښښ کوي، هڅه کوي او زيار باسي.
د جګړې په ډګر کې هغه مهال چې د جګړې پای نه برېښي، مجاهد ته په ناڅاپي

توګه پلانونه ورپه زړه کيږي او په ناڅاپي توګه بريمن کيږي.
بيا فکر کوي او له ځانه پوښتنه کوي: "زه ولې د هغه جنګ په اړه د اوږدې مودې لپاره ځوربدم، چې له هغه تشويش او کړاوه په دوه ځله کم کړاو ګټل کېده، چې تر اوسه مې وګاللو؟"، خو حقيقت دا دی چې هر هدف له ترلاسه کېدو وروسته ساده برېښي، له کوم کوښښه پرته تر لاسه شوی غټ برياليتوبونه د هغو وړو بريو د ځنځير وروستۍ کړۍ ده، چې له نظره غورځول شوي دي.
مجاهد د رامنځ ته شويو پېښو په معنا پوهېږي او د دې پر ځای چې هدف ته د رسېدو لپاره د ډېر وخت د اخيستلو له کبله خپل ځان ملامت کړي، د هدف په ترلاسه کولو خوښي څرګندوي.
رسول الله(صل الله عليه وسلم)فرمايلي:
﴿عَنْ ثَوْبَانَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّه صَلَّى اللَّهُ عَلَيْه وَسَلَّمَ لَا تَزَالُ طَائفَةٌ منْ أُمَّتي ظَاهرِينَ عَلَى الْحَقِّ لَا يَضُرُّهُمْ مَنْ خَذَلَهُمْ حَتَّى يَأْتِيَ أَمْرُ اللَّه وَهُمْ كَذَلكَ﴾(1)
ژباړه: (ثوبان(رضی الله عنه) فرمايي چې رسول الله(صل الله عليه وسلم)فرمايلي دي: زما د امت يوه ډله به د تل لپاره پر حق برابره وي ، بې غيرته او بې ننګه خلک به هغوی ته زيان ونه رسوي، تر دې چې د الله(ﷻ) حکم راشي او دوی په همدې حالت وي-يعنې د مرګ باد راولګيږي).
د يوې جګړې تر ګټلو وروسته مجاهد خپل برې لمانځي، هغه ورته ښاغلی او ګران وي، ځکه بايلل وه(2)، سختې شپې وې، د شک له درده ډکې شپې او له

1 - صحيح المسلم
2 - د برې د لمانځلو پر مهال د بايلوو او ماتې يادونه عجيبه برېښي خو ليکونکی له جګړې او برې دمخه د څو کيفيتونو يادونه کوي او وايي چې مجاهد د شکست د امکان، سخت حالت،



نه ختمېدونکي انتظاره ډکې ورځې وې.
کله چې خلک مجاهد د خوشحالۍ په حال کې ويني، حيرانيږي وا وايي: "هغه ولې خپل برې دومره لمانځي؟ څوک پوهېږي چې هغه به تل برياله وي؟ کېدای شي په راتلونکې جګړه کې د نهيلۍ سره مخ شي؟ او شونې ده مخکې تر دې چې پر ځان پوه شي دښمن پر ځان راوپاروي؟"
خو مجاهد د خپلو کارونو په تفسير تر بل هر چا ښه خبر دی، غواړي چې د خپل ځان له ډاډه خوند واخلي، ځکه اطمئنان ورته د برې په څېر ارزښتناکه ډالۍ راوړې ده.
همدا راز مجاهد پوهېږي چې يو څوک بايد د خپلو جذباتو او خوشحاليو واګې په خپل لاس کې ونيسي، څو هېڅ نه کړي چې هر څوک په هر څه کې خپل جذبات نه شي تعقيبولای، پوهېږي چې مرسته او برې د الله تعالی له لورې راځي.
حضرت عايشه(ɩ) فرمايي:
"ما هېڅکله هم رسول الله(صل الله عليه وسلم) په تېزه خندا نه دی ليدلی، چې خوله يې وازه شوې او مبارکه نرۍ ژبه يې ليدل شوې وي، بلکې هغه به يوازې تبسم کولو".
مجاهد نن هغه برې لمانځي چې پرون يې ګټلی دی او د نن له برې د سبا د جنګ لپاره قوت راباسي.
له يو برې وروسته د خپلو خوشحاليو د سمبالولو توان، د سبا ورځې د ماتې او شکست د تريخوالي د زغملو او قبلولو سره مرسته کوي.

شکمنو او -------------دردوونکو شيبو او اوږد انتظار څخه تېر شوی او برې ته رسېدلی دی ځکه خو اوس د برې په لمانځنه بوخت او خوښ دی.

# یوازیتوب

پاک نبي(صل الله علیه وسلم) فرمایلي:

﴿عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ عَنِ النَّبِيِّ صلي الله عليه وسلم قَالَ خَيْرُ الصَّحَابَةِ أَرْبَعَةٌ وَخَيْرُ السَّرَايَا أَرْبَعُ مِائَةٍ وَخَيْرُ الْجُيُوشِ أَرْبَعَةُ آلَافٍ وَلَنْ يُغْلَبَ اثْنَا عَشَرَ أَلْفًا مِنْ قِلَّةٍ﴾[1]

ژباړه: (له ابن عباس(رضی الله عنه) څخه روایت دی چې رسول الله(صل الله علیه وسلم)فرمایلي دي: څلور ملګري غوره دي، د سریې د ګډون کوونکو غوره شمېر څلور سوه تنه دی، د لښکرونو له جملې غوره لښکر د څلور زره تنو دی او دولس زره تنه به د شمېر د کم والي له کبله مات نه شي، بلکې د دې لښکر د ماتې علت به شمېره نه، بل څه وي).

مجاهد پوهېږي چې انسان د یوې تشې جزیرې په څېر نه دی، په دې هم پوهېږي چې د حق په لار کې له نقشې او تکتیک پرته جهاد نه شي کولای، د هغه پلانونه چې هر څه وي بیا هم د نورو مرستې ته اړتیا لري، خو نورو ته اړتیا دا معنا نه لري چې مجاهد په خپل ځان باوري نه دی.

یو مجاهد دې ته هم اړتیا لري، چې خپل پلانونه او نیتونه له یو چا سره بحث کړي، په دې سره کولای شي له نورو د مرستې او کومک غوښتنه وکړي، په خپل لښکرکوټ او ارامځای کې ملګرو ته د خپلو تېرو جګړو خبرې وکړي، خو

[1] - سنن ابو داؤد ، جامع الترمذي



مجاهد نه پرېږدي چې اړتیا یې د نورو له خوا د یوې تېروتنې په توګه استعمال شي او هغه په خپل ځان بې باوره شي.

د مجاهد کارونه څرګند وي خو پلانونه یې د یو راز له کبله پټ وي.

مجاهد له خپلو ملګرو سره یو ځای ارام کوي، خو کله هم د فعالیتونو په لړ کې خپل نوبتي مسئولیت بل ته نه سپاري.

کله په غیر ارادي توګه او تېروتنې سره یو ناسم اقدام کوي، په دې ډول د یوې ژورې کندې خوا ته ټېل وهل کیږي، د یوازېتوب زور ورته رسیږي او وېرول کیږي، کله چې د یوې حقې جګړې په لټه کې وو، په خیال کې یې نه ګرځېده چې له داسې یو حالت سره به مخ شي، خو بیا هم داسې وریښېښ شول.

د تیارو په ډنډ کې د ډوبېدو پر مهال خپل ځان ته وایي: "دا دی! زه د یوازېتوب د تورتم په لور ونښویېدم، او به ډېرې تیارې او ډېرې ژورې دي".

خو د هغه زړه ځواب ورکوي: "یو څیز یاد ساته! داسې نه ده چې په اوبو کې هر ډوبېدونکی غرقیږي او ساه یې بندیږي، مګر په رښتیا سره غرقېدونکی هغه څوک دی، چې د اوبو لاندې پاتې شي او د راوتلو کوښښ ونه کړي".

ځکه خو مجاهد له خپل هر رګ څخه په ګټې اخیستنې سره کوښښ کوي، چې له هغه ستونزمن حالته ووځي چې په کې پرېوتی وي.

رسول الله(صل الله علیه وسلم)فرمایي:

﴿عَنْ ابْنِ عُمَرَ رضي الله عنهما عَنْ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَوْ يَعْلَمُ النَّاسُ مَا فِي الْوَحْدَةِ مَا أَعْلَمُ مَا سَارَ رَاكِبٌ بِلَيْلٍ وَحْدَهُ﴾[1]

ژباړه: (ابن عمر(رضی الله عنه) فرمایي له رسول الله(صل الله علیه وسلم)یې اورېدلي چې فرمایل یې که چېرته د یوازې والي د (افاتو او ضررونو) په هکله په هغه څه چې زه پرې پوهیږم نور خلک پوه شي، نو هېڅ یو سپور به د شپې

[1] -صحیح البخاري ، سنن الترمذي

يوازې سفر ونه کړي).
مجاهد له يوازېتوبه ګټه اخلي او يوازېتوب نه پرېږدي چې هغه ته زيان ورسوي، مجاهد د وېرې او دوه زړه توب (ګډوډتيا ) په شېبو کې ښه تمرين کوي، کوښښ کوي په پوره ځيرکتيا او احتياط سره هغه څه تر سره کړي چې نور يې په ناپوهۍ سره تر سره کوي، ساه واخلي، سترګې ورپوي،ځان غلی کړي او د خپل چاپېريال جاج واخلي.
ځان له تشنجه خلاصوي، خپل درک، احساس او شعور ته لار برابروي، چې په پوره ازادۍ سره کار وکړي، په داسې ډول چې په دې کارونو کې د هغه وېره او غوښتنې نه وي شاملې.
مجاهد پوهېږي چې څه ډول بايد د يوازېوتوب او پر نورو د اعتماد تر منځ انډول پيدا کړي.





الله تعالی(ﷻ) فرمايلي:
﴿وَاخْفِضْ جَنَاحَكَ لِمَنِ اتَّبَعَكَ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ﴾[1]
ژباړه: (او ښکته کړه خپل وزر (يعنې نرمي وکړه ) هغه چاته چې ستا پيروي يې کړې ده، مؤمنانو ته).
د الله رسول(صل الله عليه وسلم) فرمايي:
﴿عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَامِرِ بْنِ كُرَيْزٍ يَقُولُ سَمِعْتُ أَبَا هُرَيْرَةَ يَقُولُ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمُؤْمِنُ أَخُو الْمُؤْمِنِ لا يَخْذُلُهُ وَلا يَظْلِمُهُ لا تَحَاسَدُوا وَلا تَدَابَرُوا وَلا تَقَاطَعُوا وَكُونُوا عِبَادَ اللَّهِ إِخْوَانًا كُلُّ الْمُسْلِمِ عَلَى الْمُسْلِمِ حَرَامٌ مَالُهُ وَعِرْضُهُ وَدَمُهُ لا يَخْطُبِ امْرُؤٌ عَلَى خِطْبَةِ أَخِيهِ وَلا يَبِعْ عَلَى بَيْعِ أَخِيهِ وَإِنَّ اللَّهَ لا يَنْظُرُ إِلَى أَجْسَادِكُمْ وَلا إِلَى صُوَرِكُمْ وَلَكِنْ يَنْظُرُ إِلَى قُلُوبِكُمْ التَّقْوَى هَهُنَا وَأَشَارَ إِلَى صَدْرِهِ﴾[2]
ژباړه: (عبد الله بن عامر بن کريز(رضی الله عنه) فرمايي چې ما له ابو هريرة(رضی الله عنه) څخه اوريدلي هغه به ويل رسول الله(صل الله عليه وسلم)فرمايلي: يو مؤمن د بل مؤمن ورور دی د هغه مرسته به نه پرېږدي، نه به پرې ظلم کوي، يو له بل سره کينه مه کوئ، يو بل ته شا مه اړوئ، يو د بل سره اړيکې مه پرې کوئ، د الله تعالی(ﷻ) بندګان او په خپلو منځو کې ورونه و اوسئ، د هر مسلمان پر بل مسلمان باندې مال، ناموس او وينه حرامه ده، يو

[1] - الشعراء:۲۱۵
[2] - صحيح مسلم

څوک دې د واده لپاره د خپل ورور د مرکې (د نکاح لپاره پر یوه مېرمن جرګه کېدل) دپاسه بله مرکه نه کوي، نه دې د یو ورور د سوداګرۍ پر سر بله سوداګري کوي، الله تعالی(ﷻ) ستاسې بدنونو او شکلونو ته نه ګوري، بلکې ستاسې زړونو ته ګوري، پرهېزګاري او تقوی دلته ده او رسول الله(صل الله علیه وسلم)خپلې سینې ته اشاره وکړه یعنې په زړه کې).

مجاهد د مینې له وجود پرته هېڅ نه شي کولای، مینه او ناز د مجاهد حقیقي طبیعت دی او داسې اړتیا ورته لري لکه څنګه چې خوراک، څښاک او په جګړه کې د بریالیتوب پر مهال خندا او خوشحالۍ ته اړتیا لري، خو که ورځ ختمه او لمر پرېوزي او کرۍ ورځ په مجاهد د خوشحالۍ او نېکمرغۍ شېبه نه وي راغلې، دا معنا لري چې یو څه تېروتنه رامنځ ته شوې.

مجاهد د خپل واورين قناعت تر شا یو سوځېدونکی او لولپه کېدونکی زړه لري، چې له همدې امله هغه د نورو په پرتله ځان زیات په خطر کې اچوي، ځکه بې له دې چې دمه وکړي، په پرله پسې توګه د تودې مینې او جوش لټون کوي، ولو که دغه جوش او مینه پیدا هم نه کړي.

مجاهد د خپل هدف د اهمیت په نظر کې نیولو سره، له حالاتو وېره نه لري او په دې لار کې له مینې پرته ژوند هم نه شي کولای.

رسول الله(صل الله علیه وسلم)وایي:

﴿عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَأْمُرُ بِالْبَاءَةِ وَيَنْهَى عَنِ التَّبَتُّلِ نَهْيًا شَدِيدًا وَيَقُولُ تَزَوَّجُوا الْوَدُودَ الْوَلُودَ إِنِّي مُكَاثِرٌ الْأَنْبِيَاءَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ﴾[1]

ژباړه :(انس بن مالک(رضی الله عنه) وایي چې رسول الله(صل الله علیه وسلم)په واده امر کولو او د ګوښه کېدو څخه به یې په سختۍ سره منعه کوله

[1] - مسند احمد بن حنبل



او فرمایل به یې: مینه ناکه او بچي زېږوونکې ښځې سره واده وکړئ، ځکه چې زه به د قیامت په ورځ د انبیاؤ په منځ کې د خپل امت د شمېر په زیاتوالي فخر کوم).

مجاهد د فرصت په تر لاسه کولو سره واده کوي، ځکه دا هم یو ډول جهاد دی، پوهېږي چې ښه کورنۍ د ښې ټولنې اساس دی، خو کله کله د هغو خلکو له امله ځورېږي، چې د هغه د مینې وړ نه وي، داسې وختونه هم راځي چې ژوند یې په امتحان کې اچوي او د هغو خلکو د ډلې برخه ګرځي چې ورسره مینه کوي.

په داسې حالاتو کې کوښښ کوي، څو وپوهېږي ایا د خدای غوښتنې تر سره کوي؟ او که د خپل نفس په خواهشاتو روان دی؟ په لومړي حالت کې هغه بې له کوم ډول شکایته اطاعت کوي، تر دې که له یو چا جلا کېدو ته هم اړ شي، خو که چېرته دا بیلتون د یو چا د بد نیتۍ له امله رامنځ ته شي، په سختۍ سره یې دفعه کوي.

تر څو چې مجاهد د ښه شیانو د لیدلو وړتیا لري، باوري دی چې په سینه کې یې ښه امور موجود دي، دنیا د یوې اینې حیثیت لري، ټولو خلکو ته هغه څه ښکاري، چې د هغوی په دننه کې دي.

# عدل

الله تعالی(ﷻ) په خپل سپیڅلي کتاب کې فرمایي:
﴿وَمَنْ أَظْلَمُ مِمَّنِ افْتَرَى عَلَى اللَّهِ كَذِبًا أُولَئِكَ يُعْرَضُونَ عَلَى رَبِّهِمْ وَيَقُولُ الْأَشْهَادُ هَؤُلَاءِ الَّذِينَ كَذَبُوا عَلَى رَبِّهِمْ أَلَا لَعْنَةُ اللَّهِ عَلَى الظَّالِمِينَ﴾[1]
ژباړه: (او څوک دی ډېر ظالم له هغه چا چې له ځانه په الله پورې درواغ تړي بلکې نه شته، دغه درواغ ویونکي به د قیامت په ورځ خپل رب ته وړاندې کړای شي او وبه وایي شاهدان همدوی هغه کسان دي چې په خپل رب یې درواغ تړلي وو، خبر دار شئ لعنت د الله(ﷻ) دې وي پر ظالمانو).
ناشونې ده چې مجاهد د ظلم په وړاندې غلی او بې طرفه پاتې شي، هغه پوهېږي چې په کایناتو کې هر څه یو د بل سره تړلي دي، ځکه خو د هر چا له خوا تر سره شوی هر کار په نورو اغېز کوي، له همدې کبله کله چې مجاهد یو څوک په کړاو کې ویني کوښښ کوي چې د دې ځورېدلو مخه ونیسي.
خو کله چې د ظلم او زیاتي پر ضد جګړه کوي، ظالمان کافران نه بولي او نه پرې لعنت وایي، یاد لري او پوهېږي، چې هر انسان یو ځل د الله تعالی(ﷻ) په مخ کې درېدونکی دی او الله تعالی(ﷻ) به ترې د ګردو کارونو او ویناوو پوښتنه کوي.
مجاهد د خپل کار تر بشپړولو وروسته د یو چا په اړه پرېکړه نه کوي، مجاهد دنیا ته د خپلو وروڼو د مرستې لپاره راغلی، د دې لپاره نه چې خپل ګاونډیان پړ او وغندي.
الله(ﷻ) فرمایي:

[1] - هود:۱۸



﴿وَإِنْ طَائِفَتَانِ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ اقْتَتَلُوا فَأَصْلِحُوا بَيْنَهُمَا فَإِنْ بَغَتْ إِحْدَاهُمَا عَلَى الْأُخْرَى فَقَاتِلُوا الَّتِي تَبْغِي حَتَّى تَفِيءَ إِلَى أَمْرِ اللَّهِ فَإِنْ فَاءَتْ فَأَصْلِحُوا بَيْنَهُمَا بِالْعَدْلِ وَأَقْسِطُوا إِنَّ اللَّهَ يُحِبُّ الْمُقْسِطِينَ﴾[1]
ژباړه: (که چېرته د مؤمنانو دوه ډلې په خپل منځ کې سره په جګړه کې اخته شي، د هغو دواړو ډلو تر منځ روغه او سوله وکړئ، که یوې ډلې له دې دواړو څخه پر هغې بلې باندې ظلم او بغاوت وکړ، نو بیا ټول له هغې ډلې سره جنګ وکړئ چې تېری یې کړی، تر هغه وخته چې بېرته د الله(ﷻ) حکم ته راوګرځي، نو که چېرته ظالمه او متجاوزه ډله راوګرځېدله او غاړه یې کېښودله نو روغه وکړئ د دوی په منځ کې په انصاف او عدل او انصاف کوئ په هر کار کې بې شکه الله تعالی(ﷻ) انصاف کوونکي خوښوي).
الله تعالی(ﷻ) مجاهد ته د سزا او بښنې قدرت ورکړی او هغه هم دغه دواړه وسلې په پوره مهارت کاروي، هغه څوک مجاهد نه بلل کېږي، چې د خپلو ملګرو په منځ کې کښېني او وایي: "زه همېشه سم او روغ کار کوم"، ځکه دغه تن به یا درواغ وایي او یا به د خپل ځان له حقیقته بې خبره وي، له دې کبله چې هر انسان له تېروتنې سره مخ کېدونکی دی، له مجاهده هم تېروتنې کېږي، خو رښتینی مجاهد پوهېږي، چې الله تعالی(ﷻ) به یې حتماً سمې لارې ته رهبري کړي او یو ځل بیا به یې له هغو خلکو سره یو ځای کړي، چې په اړه یې تېروتنه شوې، په دې ډول مجاهد د تېروتنو د جبیرې فرصت تر لاسه کوي او د پخوانیو تېروتنو جبیره کوي.
الله تعالی(ﷻ) فرمایي:
﴿إِنَّ اللَّهَ يَأْمُرُ بِالْعَدْلِ وَالْإِحْسَانِ وَإِيتَاءِ ذِي الْقُرْبَى وَيَنْهَى عَنِ الْفَحْشَاءِ وَالْمُنْكَرِ

[1] - الحجرات:۹

﴿وَالْبَغْيِ يَعِظُكُمْ لَعَلَّكُمْ تَذَكَّرُونَ﴾[1]
ژباړه: (بې شکه الله تعالی(ﷻ) امر کوي په عدل، انصاف، احسان کولو او خپلوانو ته په ورکړې سره او منعه کوي له ناوړه، بدو کارونو او سرکښۍ څخه، پند درکوي تاسې ته (په دې اوامرو او نواهیو) د دې لپاره چې تاسې عبرت واخلئ).

مجاهد د رحم او ثبات تر منځ د انډول راوستلو لپاره کوښښ کوي او تل په عدل عمل کوي.

مجاهد باید د خپلو خوبونو د ریښتیا کېدو لپاره کلکه او پیاوړې عقیده ولري او د هدف له تر لاسه کېدو وروسته له یاده ونه باسي، چې تر هدف رسېدونکې لار د تل لپاره د خلکو له فکر سره سمه نه وي، له همدې امله مجاهد کولای شي امر ورکړي او ورسره زړه سوی ولري.

رسول الله(صل الله علیه وسلم) فرمایي:

﴿عن ابن مسعود قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صلی الله علیه وآله وسلم هَلَكَ الْمُتَنَطِّعُونَ قَالَهَا ثَلاثًا﴾[2]

ژباړه (ابن مسعود(رضی الله عنه) فرمایي چې رسول الله(صل الله علیه وسلم)فرمایلي په خبرو او کار کې تکلف کوونکي هلاک شول، او دغه خبره یې درې ځلې وکړه).

الله تعالی(ﷻ) هېڅکله هم خپل بندګان یوازې نه پرېږدي، بلکې د الله تعالی(ﷻ) تدابیر او مقاصد د انسان له پوهې پورته دي، ځکه خو د امر ورکولو توان او د یو بل تر امر لاندې اوسېدل مجاهد ته زړه ورکوي او ساتنه یې کوي.

[1] - النحل: ۹۰
[2] - صحیح مسلم



مجاهد یوازې معقول امور قبلوي، د کارونو تر منځ انډول راولي، پوهېږي چې په ټولو ژبو کې مهمې خبرې لنډې وي، د بېلګې په توګه:

خدای.

هو.

ژوند.

دغه کلمې که څه هم په ویلو کې لنډې، خو په معنا کې ډېرې پراخه دي، پر دې درې کلمو سربېره، یوه بله داسې لنډه کلمه چې ډېرو خلکو ته یې ویل ګران دي (نه) ده، چې مجاهد د دې کلمې د استعمال ځای پېژني.

خو هغه سړی چې د (نه) کلمه نه وایي، فکر کوي چې ګوندې ډېر ښه اداره کوونکی، ښه سلوک کوونکی او ښه تربیه کوونکی دی، داسې انګېرې چې دغه کلمه د ځان غوښتونکو، کینه کوونکو او غیر روحاني خلکو له خوا ویل کیږي، خو رښتونی مجاهد د دې ډول افکارو په لومه کې نه ایساریږي.

بیا هم د یو مجاهد په ژوند کی داسې شېبې راځي، چې نورو ته د (هو) ویل د هغه د خپل ځان په حق کې د (نه) معنا لري، خو د هغه شونډې به هېڅکله هم (هو) ونه وایي په داسې حال کې چې زړه یې (نه) وایي.[1]

[1] -په دې درې نیمو فقرو کې مصنف خورا فلسفي فکر وړاندې کړی چې لوستونکی زیات دقت ته اړ کوي ګوندې د (نه) او (هو) ویلو له منطق څخه مصنف مجاهد ته دا توصیه کوي چې باید د نورو په وړاندې له انصاف څخه کار واخلي، که څه هم د (نه) کلمه خورا لنډه ده خو ستره معنی لري او کېدلای شي چې کله به د (نه) ویل یعنی انکار کول د نورو مسلمانانو او ټولنې په وړاندې مثبتې نتیجې لري او چېرته به(هو) ویل دا ډول پایلې لري، خو نتایجو ته کتل پکار دي او دغه توري دې په داسې توګه استعمال شي چې د ټولنې په وړاندې عادلانه وي ولو که خپله د مجاهد په وړاندې بالعکس معنی ولري یعنې که څه هم د مجاهد لپاره ګټه نه لري. (ژباړن)




الله(ﷻ) فرمايلي:

﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا اسْتَعِينُوا بِالصَّبْرِ وَالصَّلَاةِ إِنَّ اللَّهَ مَعَ الصَّابِرِينَ﴾[1]

ژباړه: (ای هغو کسانو چې ايمان مو راوړی دی، له الله(ﷻ) څخه په صبر او په لمانځه سره مرسته وغواړئ، بې شکه الله تعالی(ﷻ) د صابرانو مل دی).

هغه مجاهد چې په خپله زيرکتيا او ذکاوت کې مبالغه کوي، په حقيقت کې په تېروتنې سره د خپل دښمن د قوت سپکوالی او غلطه اندازه لګوي، خو يو تن بايد هېره نه کړي چې ځينې وخت قوت له زيرکتيا ډېر اغيز لري.

د مثال په توګه که د يو ښاروي سره پنځلس دقيقې مقابله وشي، خو په پای کې ښاروی وپوهېږي، چې د هغه سره له چل څخه کار اخيستل کيږي، نو تر ټولو دمخه په خپل دښمن کلک بريد کوي، چې دغه بريد د يوې سترې غميزې د رامنځ ته کېدو سبب ګرځي او د دې غميزې مخه نه قناعت  نيولای شي، نه دليل، نه پوهه، نه جادو او منتر.

له همدې امله مجاهد هېڅکله هم د خپل دښمن قوت او ځواک ته په سپکه سترګه نه ګوري، کله چې د دښمن قهر او غوسه په هيجان بدله شي، مجاهد د جګړې د ميدان څخه شاتګ ته مخه کوي او انتظار باسي څو د دښمن دغه خپل سری هيجان او غوسه په خپله له منځه ولاړه شي، بيا مجاهد تازه بريد پيلوي.

الله تعالی(ﷻ) فرمايي:

﴿فَلَمَّا فَصَلَ طَالُوتُ بِالْجُنُودِ قَالَ إِنَّ اللَّهَ مُبْتَلِيكُمْ بِنَهَرٍ فَمَنْ شَرِبَ مِنْهُ فَلَيْسَ مِنِّي وَمَنْ لَمْ يَطْعَمْهُ فَإِنَّهُ مِنِّي إِلَّا مَنِ اغْتَرَفَ غُرْفَةً بِيَدِهِ فَشَرِبُوا مِنْهُ إِلَّا قَلِيلًا مِنْهُمْ

[1] - البقرة:۱۵۳



فَلَمَّا جَاوَزَهُ هُوَ وَالَّذِينَ آمَنُوا مَعَهُ قَالُوا لَا طَاقَةَ لَنَا الْيَوْمَ بِجَالُوتَ وَجُنُودِهِ قَالَ الَّذِينَ يَظُنُّونَ أَنَّهُمْ مُلَاقُو اللَّهِ كَمْ مِنْ فِئَةٍ قَلِيلَةٍ غَلَبَتْ فِئَةً كَثِيرَةً بِإِذْنِ اللَّهِ وَاللَّهُ مَعَ الصَّابِرِينَ﴾[1]

ژباړه: (نو کله چې طالوت له لښکرو سره راووت، ويې ويل چې الله(ﷻ) په يوه وياله سره ستاسې ازمويونکی دی، هر هغه څوک چې له هغې ويالې اوبه وڅښي، زما له پيروانو نه دی او څوک چې يې ونه څښي نو بې شکه هغه زما له تابعانو څخه دی، که يوه لپه اوبه د لاس په ورغوي سره واخلي پروا نه لري، ټولو له هغې ويالې څخه اوبه وڅښلې مګر لږو له دوی څخه له يوې لپې زياتې ونه څښلې، نو کله چې طالوت او ورسره مؤمنان له هغې ويالې تېر شول نو هغو کسانو چې مخالفت يې کړی  و او اوبه يې څښلې وې وويل چې نن ورځ له جالوت او د هغه له لښکر سره زموږ د جنګ کولو توان نه شته، هغه کسانو چې يقين يې و چې بې شکه دوی الله تعالی(ﷻ) ته ورتلونکي دي، وويل ډېر کرته د مؤمنانو کمه ډله د الله(ﷻ) په حکم سره د کفارو په ډېرې غټې ډلې غلبه کړې او الله(ﷻ) له صابرانو سره دی).

مجاهد کولای شي په شمېر او سامان الاتو کې تر خپل ځان لوړ دښمن وپېژني او پوهېږي چې په دې دښمن بريد د حتمي ماتې او د دښمن د بري معنا لري.

مجاهد باوري وي، چې پر زورور دښمن بريد يې په داسې يوه لومه کې ښکېلولای شي، چې خلاصی ځنې نه وي، نو دې لپاره چې له دې ستونزمن حالته ځان وباسي، مناسب ګام پورته کوي، هغه لار او طريقه نه غوره کوي، چې دښمن ورته لېواله وي، کله چې دښمن د يو کم عقل ماشوم په څېر اقدام وکړي، مجاهد يې په همدې ډول ځواب وايي.

کله داسې حالت منځ ته راځي، چې دښمن يې د جګړې ډګر ته رابولي او ننګوي

[1] - البقرة:۲۴۹

یې، خو مجاهد داسې څرګندوي، چې ګوندې کوڼ دی او د خپل دښمن په خبره نه پوهېږي.
کېدای شي خلک دا ډول اقدام وېره او بې زړه توب وبولي، خو یو متل دی چې (کاروان تیرېږي او سپي غپېږي)، مجاهد د داسې خلکو خبرو ته پاملرنه نه کوي او پوهېږي، چې په یوه خلاصه جګړه کې د مرغۍ زړورتیا او غوسه هغه د پیشو له پنجو څخه نه شي ژغورلای.
په داسې حالاتو کې مجاهد ته پکار دي، چې ځان د صبر په وسله سمبال کړي او د یوې داسې شېبې انتظار وکړي، چې دښمن غافل وي، څو پر دښمن پرله پسې ګوزارونه وکړای شي، مجاهد تل د یو مناسب فرصت او مناسبو وسایلو انتظار باسي چې هدف ته ورسیږي.
مجاهد باید هېڅکله هم اجازه ورنه کړي د هغه چا له خوا بې لارې شي، چې د خپل هدف او ښو نتیجو د تر لاسه کولو توان نه لري او بیا د مجاهد د دا ډول کړنو رد په ډاګه اعلانوي، دغه ډول خلک د دې چیچنیایي متل مصداق دي، چې وايي (کېدړه په ټوپ وازدې ته نه رسېده خو ویل یې زما نه ده پکار، ښه مزه نه کوي).
الله تعالی(ﷻ) فرمایي:
﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا اصْبِرُوا وَصَابِرُوا وَرَابِطُوا وَاتَّقُوا اللَّهَ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ﴾[1]
ژباړه: (ای مؤمنانو ! صبر کوئ او په صبر کې په کفارو غالب و اوسئ او په جهاد قائم اوسئ او له الله(ﷻ) وو یرېږئ، چې سوبمن شئ).

[1] - ال عمران: ۲۰۰



## وېره

الله(ﷻ) فرمایي:
﴿سَنُلْقِي فِي قُلُوبِ الَّذِينَ كَفَرُوا الرُّعْبَ بِمَا أَشْرَكُوا بِاللَّهِ مَا لَمْ يُنَزِّلْ بِهِ سُلْطَانًا وَمَأْوَاهُمُ النَّارُ وَبِئْسَ مَثْوَى الظَّالِمِينَ﴾[1]
ژباړه: (ژر به د هغو کسانو په زړونو کې چې کافران شوي رعب او وېره وغورځوو، له دې امله چې دوی له الله(ﷻ) سره هغه څه شریک کړي چې الله(ﷻ) پرې کوم برهان او دلیل نه دی نازل کړی، د دوی د هستوګنې ځای اور دی چې دغه اور د ظالمانو د هستوګنې ډېر بد ځای دی).
نبي کریم (صل الله علیه وسلم) فرمایلي دي:
﴿عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَيْنَانِ لا تَمَسُّهُمَا النَّارُ عَيْنٌ بَكَتْ مِنْ خَشْيَةِ اللَّهِ وَعَيْنٌ بَاتَتْ تَحْرُسُ فِي سَبِيلِ اللَّهِ﴾[2]
ژباړه: (له ابو هریرة څخه روایت دی چې رسول الله(صل الله علیه وسلم)فرمایلي دي: دوه ډوله سترګو ته به د دوزخ اور ونه رسیږي، یوه هغه چې د الله(ﷻ) له وېرې وژاړي او دوهمه هغه چې د الله(ﷻ) په لار کې په پیره کولو شپه وېښه تېره کړي).
مجاهد له هېڅ شي نه وېرېږي او نه په کوم ډول سختیو کې له ښکېلتیا ډار لري، کېدای شي چې د جنګ له ډګره په شا کېدل، د دفاع یوه ښه وسیله وي، خو په دې معنا نه، چې ګوندې مجاهد دې د وېرې او ترهې پر مهال له دې تکتیکه کار واخلي، مجاهد د تېښې کېدو پر مهال د دردونو او ماتې

[1] -آل عمران: ۱۵۱
[2] - جامع الترمذي

زغم تر دې غوره ګڼي، چې وتښتي او دښمن ته هغه امتیاز او ویاړ ورکړي چې وړ یې نه وي.

الله تعالی(ﷻ) فرمایلي دي:

﴿وَمِنْ حَيْثُ خَرَجْتَ فَوَلِّ وَجْهَكَ شَطْرَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ وَحَيْثُ مَا كُنْتُمْ فَوَلُّوا وُجُوهَكُمْ شَطْرَهُ لِئَلَّا يَكُونَ لِلنَّاسِ عَلَيْكُمْ حُجَّةٌ إِلَّا الَّذِينَ ظَلَمُوا مِنْهُمْ فَلَا تَخْشَوْهُمْ وَاخْشَوْنِي وَلِأُتِمَّ نِعْمَتِي عَلَيْكُمْ وَلَعَلَّكُمْ تَهْتَدُونَ﴾[1]

ژباړه: (پیغمبره ! له هر ځایه چې ووځې، مخ دې مسجد حرام ته واړوه (په لمونځ کې) او هر چېرته چې یاستئ (مؤمنانو ) مخ مو په لمانځه کې مسجد حرام ته واړوئ، چې د یهودو او مشرکینو درباندې دلیل نه وي قائم او هغه خلک چې ظالمان دي ترې مه وېرېږه، له ما وډار شه چې خپل نعمت درباندې ولوروم او چې د حق لار مینده کړئ).

له یوې مهمې پرېکړې وړاندې مجاهد د تېروتنې، ناسمې پرېکړې او اقدام کولو وېره لري، خو که چېرته هغه ته د انتخاب موقع ورکړل شي، نو د اړتیا په وخت کې د (هو ) د ویلو پر مهال زړور، خو د (نه) ویلو سره وېره هم لري.

مجاهد پوهېږي چې نړۍ د نړۍ په وړاندې په وېره کې نغښتې ده، چې یا خو دغه وېره د نظامي قوت له کبله ده او یا د ړانده تقلید له کبله.

وېره دوه ځایه راڅرګندېږي، یا د جګړې او یرغل پر مهال، او یا د بل چا د لاس لاندې والي او اطاعت له کبله، چې د وېرې دا دواړه ډولونه د یوې سکې دوه جلا جلا مخونه دي.

کله چې مجاهد له وېره اچوونکي سره مخ شي، داسې احساسوي چې ټول انسانان په دې ډول شک کې نغښتي دي، ځکه نو هغه باید له دې خنډونو

[1] ـ البقرة: ۱۵۰



سره سره پر مخ ولاړ شي او له ستونزو سره مقابله وکړي، خو پوښتنه دا ده، چې د خنډونو له شتون سره پر مختګ ولې هغه د پخوا په نسبت لا ځواکمنوي؟

دا ځکه چې هغه خپله وېره د یو محرک په توګه استعمالوي، نه د یو "بریک " په توګه، هغه له خپل دښمنه زده کړه کوي او وېره یې مخنیوی نه شي کولای.

د غم، سختۍ او بې ګټې حالاتو پر مهال مجاهد په چوپتیا او مېړانه پر مخ ځي، د الله(ﷻ) په رحمت تکیه او په اتلولۍ سره یون کوي.

مګر مجاهد له الله تعالی(ﷻ) پرته له هېچا وېره نه لري، هغه وېره چې په زړه کې یې شته، د هغه ځواک راپاروي نه داسې چې د ځواکونو د ځپلو سبب یې ګرځي.

په ځینو ستونزمنو حالاتو کې او هغه مهال چې د جګړې په ډګر کې مجاهد ته هېڅ ګټه او امتیاز نه وي، په ټوله ارامۍ، زړورتیا او مېړانې سره تصرف کوي ، په داسې حال کې چې پر الله(ﷻ) یې اعتماد او تکیه وي.

# چوپتیا

الله تعالی(ﷻ) فرمايي:

﴿إِنَّ إِلَهَكُمْ لَوَاحِدٌ﴾[1]

ژباړه: (بې شکه ستاسې معبود خامخا يو دی).

مجاهد تل ارام وي، د ځمکې پر مخ هېڅ يو څيز نه شي کولای هغه وويروي او يا يې له خپله کاره منعه کړي، ځکه هغه په سمه او سيده لار روان دی، حق، رښتيا او وخت د هغه ملګري دي، پوهېږي چې وخت څه ډول مهار کړي او د ناسم قدم له پورته کولو په څه ډول ځان وساتي، د مجاهد قدمونه ببړني نه، بلکې ثابت او محکم وي.

هغه پوهېږي چې د نړۍ لپاره پرېکنده او بدلون ورکوونکې شېبه راتلونکې ده، له همدې امله مخکې له دې چې نړۍ بدله شي خپل ځان بدلوي.

مجاهد هېڅکله هم خامه ميوه نه غوره کوي، يو لوی جنګيالی په زغم او د خلکو د سپکاوي په وړاندې د غبرګون ښودلو په چل پوهېږي، د خپل سوک زور او اغېز ورمعلوم وي، کله چې له يو داسې دښمن سره مخ شي، چې د جګړې لپاره د چمتوالي وخت نه لري، د دښمن د سترګو په ژورتيا کې سترګې خښوي او خپل بدني ځواک ته له مراجعې پرته جګړه ګټي.

څومره چې يو مجاهد له خپلو مجاهدينو وروڼو زده کړه کوي، د ايمان د نور برېښنا يې په سترګو کې زياتېږي، اړتيا نه لري چې يو چا ته څه ثابته کړي، له دښمن سره استدلال او مجادلې ته مجبور نه دی، په داسې حال کې چې دښمن يې ګومان کوي جهاد تروريزم دی، او (نعوذ بالله) الله(ﷻ) نه شته، شريعت د وختونو تياره خرافات دي او موږ بايد د خپل دښمن د نظامي ځواک په وړاندې

[1] - الصافات:٤



سرونه ښکته کړو، خو مجاهد بيا هم په خپله لار ځي، په خپل ځان باوري وي، پوهېږي چې توان يې په سوچه او واقعي عقيده بناء او نه مغلوبېدونکی دی.

رسول الله(صل الله عليه وسلم) فرمايي:

﴿عَنِ ابْنِ الْكَلْبِيِّ قَالَ أَقْبَلَ زَيْدُ الْخَيْلِ الطَّائِيُّ حَتَّى أَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَكَانَ زَيْدٌ رَجُلا جَسِيمًا طَوِيلا جَمِيلا فَقَالَ لَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ أَنْتَ ؟ قَالَ أَنَا زَيْدُ الْخَيْلِ قَالَ بَلْ أَنْتَ زَيْدُ الْخَيْرِ أَمَا إِنِّي لَمْ أُخْبَرْ عَنْ رَجُلٍ خَبَرًا إِلا وَجَدْتُهُ دُونَ مَا أُخْبِرْتُ بِهِ عَنْهُ غَيْرِكَ إِنَّ فِيكَ لَخَصْلَتَيْنِ يُحِبُّهُمَا اللَّهُ عَزَّ وَجَلَّ وَرَسُولُهُ قَالَ وَمَا هُمَا يَا رَسُولَ اللَّهِ؟ قَالَ الأَنَاةُ وَالْحِلْمُ﴾

ژباړه: (ابن الکلبي(رضی الله عنه) فرمايي چې زيد الخيل الطايي(رضی الله عنه)[1] رسول الله(صل الله عليه وسلم)ته ورغلو (زيد د غټ جسم څښتن او جګې ونې څښتن ښکلې سړی و) نبي(µ) هغه ته وويل ته څوک يې؟ ځواب يې ورکړ زه زيد الخيل يم. رسول الله(صل الله عليه وسلم)ورته وفرمايل نه، بلکې زيد الخير، کله چې هم ماته د يو سړي په اړه څه ويل شوي ما له هغه وصفه په هغه سړي کې بل څه موندلي، غير له تا، ته دوه خاصيتونه لرې چې الله(ﷻ) او د هغه رسول يې خوښوي.

هغه وويل دا خاصيتونه څه دي؟ ای د الله رسوله(صل الله عليه وسلم)! رسول الله(صل الله عليه وسلم) وفرمايل چې حلم او وقار).

همدغه وقار په چوپتيا، تدبيراو په ځان باور کې نغښتي وي.

[1] - د ده پوره نوم زيد بن مهلهل ابو مکنف الطائي دی، چې د جاهليت پر مهال په زيد الخيل مشهور وو، خو پر اسلام له مشرف کېدو وروسته رسول الله په زيد الخير ونومولو، نوموړی يو ښه اس زغلوونکی وو.

## کرکه

الله تعالی(ﷻ) په خپل سپېڅلي کتاب کې فرمايلي:

﴿مُحَمَّدٌ رَسُولُ اللَّهِ وَالَّذِينَ مَعَهُ أَشِدَّاءُ عَلَى الْكُفَّارِ رُحَمَاءُ بَيْنَهُمْ تَرَاهُمْ رُكَّعًا سُجَّدًا يَبْتَغُونَ فَضْلًا مِنَ اللَّهِ وَرِضْوَانًا سِيمَاهُمْ فِي وُجُوهِهِمْ مِنْ أَثَرِ السُّجُودِ ذَلِكَ مَثَلُهُمْ فِي التَّوْرَاةِ وَمَثَلُهُمْ فِي الْإِنْجِيلِ كَزَرْعٍ أَخْرَجَ شَطْأَهُ فَآزَرَهُ فَاسْتَغْلَظَ فَاسْتَوَى عَلَى سُوقِهِ يُعْجِبُ الزُّرَّاعَ لِيَغِيظَ بِهِمُ الْكُفَّارَ وَعَدَ اللَّهُ الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ مِنْهُمْ مَغْفِرَةً وَأَجْرًا عَظِيمًا﴾[1]

ژباړه: (محمد د الله رسول دی او هغه کسان چې له ده سره دي، له کافرانو سره د مقابلې او مجادلې په لړ کې سخت دي، مهربانه او زړه سواندي دي په خپلو منځو کې، وينې به هغوی رکوع کوونکي او سجده کوونکي، دوی په دې عبادت سره له الله تعالی(ﷻ) فضل، مهرباني او د هغه رضا غواړي،د دوی د ديندارۍ نښې د دوی په مخونو کې د سجدو له اثره پاتې او ثابتې دي، دا او صاف هغه اوصاف دي چې مثالونه يې په تورات او انجيل کې بيان شوي دي، لکه هغه کښت چې ځانګې راوباسي او خپل ډډ ټينګ کړي، همدغه ځانګه ټينګه او بيا کلکه شي او له نرمۍ وروسته دغه کښت په خپلو ښخونو ودرېږي، بزګران د دې فصل قوت ته حيران وي، دا قوت د دې لپاره دی چې په قهر راولي کافران، الله تعالی(ﷻ) له هغو کسانو سره د ښښنې او ډېر لوی اجر وعده کړې چې ايمان يې راوړی او نېک عملونه يې کړي دي).

مجاهد ژوند ته د کينې په سترګه نه ګوري، د دښمن په زړه کې د مجاهد لپاره شته کينه هغه نه شي وېرولای، ځکه پوهېږي هغه دښمن چې د يو فرد په توګه

[1] - الفتح:۲۹



ورسره کينه لري، شونې ده چې د الله تعالی(ﷻ) په قدرت يوه ورځ د هغه نژدې ملګری شي.

بل لور ته د مجاهد له خوا د هغه د دښمن بد ګڼل شخصي او بې لامله نه دي، بلکې پر اسبابو ولاړه يوه منظمه او سيستماتيکه کرکه ده.

کله چې هغه د جګړې لپاره چمتوالی نيسي او په جګړه کې ښکېلېږي، د عيسي عليه السلام دا جملې تکراروي "د خپل دښمن سره مينه وکړئ"، مجاهد د همدې دستور او لارښوونې پيروي کوي، ځکه پوهېږي يو تن د خپل مرګ تر وروستۍ شېبې کولای شي له الله(ﷻ) څخه سمې لارې ته د هدايت موقع تر لاسه کړي، همدا ډول شونې ده د الله(ﷻ) په مهربانۍ او رحم سره ستا يو تر ټولو سرسخته دښمن ستا دوست او ورور شي.

الله(ﷻ) فرمايي:

﴿خُذِ الْعَفْوَ وَأْمُرْ بِالْعُرْفِ وَأَعْرِضْ عَنِ الْجَاهِلِينَ﴾[1]

ژباړه: (ای محمده! د ښښنې کولو عادت خپل کړه، امر وکړه په ښو او نېکو کارونو او مخ وګرځوه له ناپوهانو او جاهلانو څنې).

يوه ورځ ستر صحابي حضرت ابو درداء(رضی الله عنه)[2] په يوه کوڅه کې د خلکو ګڼه ګوڼه وليده، ډېر خلک پر يو تن راتاو شوي وو، هغه يې وهلو او سپکې سپورې يې ورته ويلې، ابو درداء هغوی ته ورغلو او پوښتنه يې وکړه "دا څه روان دي؟" هغوی ځواب ورکړ، "دې سړي خورا ستره ګناه کړې".

ابو درداء وپوښتل "ښه نو که چېرته دغه سړی د اوبو په کوهي کې وغورځېږي،

[1] - الاعراف:۱۹۹

[2] -ابو الدرداء الانصاري چې اصلي نوم يې عويمر بن مالک او د خزرج د قبيلې دی، د بدر د غزا په ورځ مسلمان شوی دی، د عمر بن الخطاب په امر د معاويه بن ابي سفيان لخوا د دمشق د قاضي په توګه ټاکل شوی وو، د هجرت په دوه دېرشم کال وفات شوی او د مصر په اسکندريه ښار کې خاورو ته سپارل شوی دی.

تاسې به يې راوباسئ ؟ "
خلکو ځواب ورکړ "هو خامخا به دا کار وکړو ".
ابو درداء وويل "دغه سړی مه وهئ، او مه ورته بد رد وايئ، بلکې هغه ته نصيحت وکړئ او د الله(ﷻ) په لور يې تشويق کړئ، د الله شکر اداء کړئ چې تاسې يې له دې ګناه ژغورلي يئ ".
خلکو ځينې وپوښتل "ايا ته له هغه کرکه نه کوې؟ "
ابو درداء ځواب ورکړ "زه له هغه څه کرکه کوم، چې ده تر سره کړي دي، بلکې کله چې هغه خپل ګناهونه پرېږدي نو زما ورور دی ".
د دې خبرو په اورېدو سره هغه تن چې ګناه يې کړې وه په ژړا شو او توبه يې وکړه.
مجاهد کوښښ کوي يقيني شي چې د کرکې احساس د هغه زړه نه شي فاسدولای.
مجاهد هوايي او ګډوډ فکر او تصرف نه کوي، له همدې امله هغه له الله جل جلاله پرته د بل چا په وړاندې خپل سر نه ټيټوي او که داسې وکړي، نو هر شي ته به د ښه نظر کولو قدرت او وړتيا له لاسه ورکړي، بلکې سربېره پر دې د خپل دښمن په وړاندې به خپل هيبت وبايلي او بيا به يې دښمن د يو مجاهد په توګه انتظار نه باسي.



# ايمان

الله(ﷻ) فرمايي:
**﴿إِنَّمَا الْمُؤْمِنُونَ الَّذِينَ إِذَا ذُكِرَ اللَّهُ وَجِلَتْ قُلُوبُهُمْ وَإِذَا تُلِيَتْ عَلَيْهِمْ آيَاتُهُ زَادَتْهُمْ إِيمَانًا وَعَلَى رَبِّهِمْ يَتَوَكَّلُونَ﴾**[1]
ژباړه: (بې شکه رېښتيني مؤمنان هغه څوک دي چې کله ورته د الله تعالی(ﷻ) نوم ياد شي زړونه يې وېرېږي او کله چې ورته د الله(ﷻ) ايا تونه ولوستل شي نو ايمان يې زياتوي او دوی په خپل رب باندې توکل کوي).
رسول الله(صل الله عليه وسلم) فرمايلي دي:
**﴿عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رضي الله عنه أَنَّ رَسُولَ اللَّه صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سُئِلَ أَيُّ الْعَمَلِ أَفْضَلُ ؟ فَقَالَ إِيمَانٌ باللَّه وَرَسُوله قِيلَ ثُمَّ مَاذَا ؟ قَالَ الْجِهَادُ فِي سَبِيلِ اللَّه قِيلَ ثُمَّ مَاذَا ؟ قَالَ حَجٌّ مَبْرُورٌ﴾**[2]
ژباړه: (ابو هريرة(رضی الله عنه) فرمايي له رسول الله(صل الله عليه وسلم) څخه پوښتنه وشوه، چې کوم عمل غوره دی؟ هغه ځواب ورکړ چې په الله تعالی او د هغه په رسول ايمان لرل، بيا پوښتنه وشوه له دې وروسته؟ رسول الله(صل الله عليه وسلم)وفرمايل چې د الله په لار کې جهاد ، درېيم ځل پوښتنه وشوه چې بيا کوم عمل؟ نو رسول الله(صل الله عليه وسلم)وفرمايل چې قبول شوی حج).
کله چې مجاهد وسله پورته او د وسلې په مهارتونو پوه شي، دې پايلې ته

1 - الانفال:۲
2 - متفق عليه

رسېږي چې هغه پوره وسلې ته اړتیا لري، خو دا هغه وسله او اوزار نه دي، چې خلک یې په ذهنونو کې لري، بلکې دا د ایمان وسله ده، دا یوه نه ختمېدونکې وسله ده، د الله(ﷻ) په بې پایانه رحمت ایمان لرل، په دې ایمان لرل، چې د الله په لار کې جهاد کوي، الله تعالی(ﷻ) به یې هېڅکله هم ذلیل نه کړي، د مجاهد په زړه کې په دې اړه کوم شک هم نه وي، ځکه قرآن یې لارښود وي.

الله تعالی(ﷻ) فرمایي:

**﴿الْحَجُّ أَشْهُرٌ مَعْلُومَاتٌ فَمَنْ فَرَضَ فِيهِنَّ الْحَجَّ فَلَا رَفَثَ وَلَا فُسُوقَ وَلَا جِدَالَ فِي الْحَجِّ وَمَا تَفْعَلُوا مِنْ خَيْرٍ يَعْلَمْهُ اللَّهُ وَتَزَوَّدُوا فَإِنَّ خَيْرَ الزَّادِ التَّقْوَى وَاتَّقُونِ يَا أُولِي الْأَلْبَابِ﴾**[1]

ژباړه: (د حج معلومې میاشتې دي، په هر چا چې فرض شو په دې میاشتو کې حج، نو جماع، ګناهونه او جګړې دې د حج په ورځو کې نه کوي، تاسې چې هر نېک کار کوئ الله(ﷻ) پرې پوهېږي او توښه واخلئ له ځانونو سره، بې شکه ښه او بهتره توښه تقوی او پرهېزګاري ده او له ما څخه ووېرېږئ ای خاوندانو د عقلونو).[2]

مجاهد پوهېږي چې د وسلې له لباس پرته هېڅ نه شي کولای، په همدې لټون وځي او تجاران یې په مخ کې خپل سوداګریز توکي وړاندې کوي.

یو وایي د یوازېتوب وسله واخله.

بل وایي چې د ټوکو ټکالو او عیب ویلو په پرده کې ځان راونغاړه.

دریم وایي ښه وسله دا ده، چې په هېڅ کې هم ځان ښکېل نه کړې.

خو مجاهد د دې ټولو چټیاتو په وړاندې خپل غوږونه کاڼه اچوي، په پوره

[1] - البقرة:١٩٧

[2] -په دې ځای کې د دې ایت کریمه ذکر د توښې په توګه د تقوی غوره کول او د الله څخه د وېرې یادونه ده چې تر قوي ایمان پورې اړه لري، او د مجاهد تر ټولو کلکه وسله ده.



زړورتیا او چوپتیا سره یو سپېڅلي ځای ته ځان رسوي او خپل ځان د هغه نه خرابېدونکي لباس په چپنه کې رانغاړي، چې عقیده ورته ویل کېږي، ځکه ایمان له هر ډول ګوزارونو ساتنه کوي او عقیده کولای شي له زهرو رڼې اوبه جوړې کړي.

د مجاهد ملګري پوښتنه کوي چې دغه ځواک یې له کومه ځایه راوړ؟ مجاهد ځواب وایي: "د الله تعالی(ﷻ) له نه تمامېدونکې پراخه رحمته، پر الله تعالی(ﷻ) د هغه ایمان څخه چې الله(ﷻ) ښه بادار، ښه مرستندوی دی او ما به په سمه لار یوازې نه پرېږدي، د الله(ﷻ) مرسته کولای شي په ټوله نړۍ برلاسې شي".

همدغه عقیده د مجاهد د ځواک سرچینه ده.

مجاهد ماضي رایادوي، پوهېږي چې روحي لټون څه ته وایي، هغه روحي پلټنه چې له امله یې د انساني تاریخ یو شمېر زرینې او پرتمینې پاڼې لیکل شوي، په دې لټون کې ډېرې د احترام او کرکې وړ پېښې راځي، لکه شرک، کفر، بت پرستي، د ناځرګندو او ورکو شیانو عبادت، له الله(ﷻ) پرته د باطلو خدایانو لپاره قرباني کول او د وینې تربګنې.

خلکو روحي لټون د ډول ډول مقاصدو لپاره استعمال کړی، خو مجاهد پوهېږي چې خپل افکار څه ډول استعمال کړي، څو د وېروونکو نیتونو په وړاندې د یوې پردې په توګه کار ځینې واخلي.

حضرت عیسي علیه السلام فرمایلي: "هر څوک باید ونه له میوې وپېژني"، مجاهد همدا اصول مراعاتوي او هېڅکله نه تېروځي.

ډېر کرته مجبورېږي چې یو ډول خبرې واوري لکه: "زه به څه ډول پوه شم چې دغه لار رښتیا ته لارښوونه کوي؟".

هغه ډېر داسې خلک لیدلي وي، چې دې ډول پوښتنو ته ځواب نه مومي، او جهاد ردوي (پرېږدي)، د نورو خبرو ته غوږ نیسي، خو د عقیدې په بابله د

اکثريت رايه او قانون د عمل وړ نه دی، مجاهد هېڅ شک او شبهه نه لري، چې هغه د قرآنکريم له لورې راهنمايي شوی دی، هغه کتاب چې د ژوند بشپړه او دقيقه فارموله او قانون دی.
الله تعالی(ﷻ) فرمايي:
﴿وَتَزَوَّدُواْ فَإِنَّ خَيْرَ الزَّادِ التَّقْوَى وَاتَّقُونِ يَا أُوْلِي الأَلْبَابِ﴾ [1]
ژباړه : (او توښه واخلئ له ځانونو سره بې شکه ښه او بهتره توښه تقوی او پرهېزګاري ده او ووېرېږئ له ما څخه ای د عقلونو څښتنانو ).
مجاهد د يوې اوږدې مودې لپاره خوب وړی وي، خو اوس هغه په ورو ورو رابيداريږي، د رښتياوو له روښنايی سره اشنا کيږي، بريښناوې يې نه شي وېرولای او هغه د سمې لارې قبلولو ته چمتو وي، خو بيا به هم له ستونزو سره مخ کيږي، په دې توګه چې له يو څه به محروميږي او په خطرونو کې به لويږي.
د هغه ملګري په حيرانتيا سره وايي: "څه يوه نا اشنا عقيده لري ! ".
د دې ډول خبرو په اورېدو سره مجاهد د يو څو شېبو لپاره له وياړه ډک شي، خو سمدستي پرې پيکه توب غالب شي، ځکه داسې احساس وکړي چې دومره قوي روحاني عقيده نه لري، لکه څومره يې چې نورو خلکو ته ښودلې ده.
دا مهال يې ملايکې په غوږ کې ووايي: " ته يوازې د الله تعالی(ﷻ) بنده او غلام يې، ته د غرور اسباب نه لرې، خو داسې دليل هم نه شته چې ته دې ځان ګناهګار او مجرم احساس کړې، ته يوازې او يوازې د خوشحالۍ دلايل او موجبات لرې ".
مجاهد هم پوهېږي چې يوازې او يوازې د نړۍ د مالک او خالق خادم او غلام دی او له همدې امله ارام او اطمئنان حاصلوي.
حضرت رسول الله(صل الله عليه وسلم)فرمايلي دي:

1 - البقرة:۱۹۷



﴿عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَنْ يَشْبَعَ الْمُؤْمِنُ مِنْ خَيْرٍ يَسْمَعُهُ حَتَّى يَكُونَ مُنْتَهَاهُ الْجَنَّةُ﴾[1]
ژباړه: (له ابو سعيد الخدري(رضی الله عنه) څخه روايت دی، رسول الله(صل الله عليه وسلم)فرمايلي دي چې: مومن د خير له اورېدو نه مړېږي تر څو چې پايله يې جنت وي، يعنې مړ شي او جنت ته داخل شي).
مجاهد د نورو په اړه بد نيته او بې اساسه اوازې او شايعات نه خپروي، ځکه هر هغه څه چې د يو چا باره کې ووېل شول د توقع خلاف د هغه چا غوږونو ته رسيږي چې له ويونکي سره دښمني لري او په پايله کې د لا زياتې دښمنۍ د پېښېدو امکان رامنځ ته کيږي.
له همدې کبله کله چې مجاهد د خپلو ورونو په اړه خبرې کوي، داسې ښيي چې د هغه ورور د هغه په څنګ کې ولاړ دی، او هره هغه خبره اوري چې له خولې يې باسې.

1 - جامع الترمذي

# د زړه خبرې

مجاهد پوهېږي چې د زړه خبرې څومره اهمیت لري.
الله تعالی(ﷻ) فرمايي:
﴿سَيُهْزَمُ الْجَمْعُ وَيُوَلُّونَ الدُّبُرَ،بَلِ السَّاعَةُ مَوْعِدُهُمْ وَالسَّاعَةُ أَدْهَى وَأَمَرُّ﴾[1]
ژباړه: (ژر ده چې مات به کړای شي ټولی د دوی او وبه ګرځوي دوی شا ګانې خپلې مسلمانانو ته د دوی لپاره دغه ماتې او قتل کافی نه دی بلکې قیامت د دوی د عذاب لپاره وخت او ځای دی او قیامت د دنیا له عذابه ډېر سخت او تریخ دی).
د جګړې په اور کې او هغه مهال چې د دښمن د برید له مخې د نیولو لپاره د فکر او تدبر وخت او ځواک نه وي پاتې، مجاهد د خپل بصیرت او ادراک له مخې چلند کوي، د خپلو لاربنودو ملایکو اطاعت کوي او په دې لړ کې له الله(ﷻ) د مرستې سوال کوي، خو د ارامتیا پر مهال د هغو اشارو او علامو په هکله فکر کوي چې الله تعالی(ﷻ) هغه ته را استولي دي.
الله(ﷻ) فرمايلي:
﴿وَمِنْ آيَاتِه مَنَامُكُمْ بِاللَّيْلِ وَالنَّهَارِ وَابْتِغَاؤُكُمْ مِنْ فَضْلِه إِنَّ فِي ذَلِكَ لَآيَاتٍ لِقَوْمٍ يَسْمَعُونَ﴾[2]
ژباړه: (او ځینې د نښو د کامل قدرت د الله(ﷻ) په شپه او ورځ کې ستاسې اوده کېدل دي او په ورځ کې ستاسې د الله تعالی(ﷻ) د فضل طلب دی، بې شکه په دې خوب او معیشت کې خامخا ډېرې نښې د قدرت دی د هغه قوم

[1] - القمر:٤٦
[2] - الروم:٢٣



لپاره چې اوري).
مجاهد پوهېږي، شعور او خوبونه هغه هیجا حروف دي، چې الله تعالی(ﷻ) یې په واسطه زموږ په وړاندې داسې څه پرانیزي چې هغه ذات له مخکې زموږ په اړه ټاکلي دي.
حضرت محمد (صل الله علیه وسلم) فرمايلي دي:
﴿عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِذَا اقْتَرَبَ الزَّمَانُ لَمْ تَكَدْ رُؤْيَا الْمُسْلِمِ تَكْذِبُ وَأَصْدَقُكُمْ رُؤْيَا أَصْدَقُكُمْ حَدِيثًا وَرُؤْيَا الْمُسْلِمِ جُزْءٌ مِنْ خَمْسٍ وَأَرْبَعِينَ جُزْءًا مِنَ النُّبُوَّةِ﴾[1]
ژباړه: (ابو هريرة(رضی الله عنه) وایي رسول الله(صل الله علیه وسلم)فرمايلي دي: کله چې قیامت را نژدې شي، نو نژدې ده چې د مسلمان خوب به نه درواغ کیږي، تر ټولو رښتیا خوب به د زیات رښتیا ویونکي وي او د مسلمان خوب د پیغمبرۍ له پنځه څلوښتو برخو یوه برخه ده).
همدا راز حضرت عبدالله ابن عمر(رضی الله عنهما) فرمايلي:
هر کله چې خلکو او عمر(رضی الله عنه) په یوه مسئله کې بحث کړی، قرآنکریم د حضرت عمر(رضی الله عنه) د سوچ مطابق نازل شوی دی.
مجاهد له یوې پرېکړه کوونکې جګړې دمخه د چوپتیا او ارامۍ حالت په خورا زیرکتیا سره څاري او پوهېږي چې زلزلې بې له کوم مخکیني خبره رامنځ ته کیږي، په داسې حال کې چې نور خلک په خبرو او لانجو خپل وخت ضایع کوي، مجاهد د وسلې په استعمال کې مهارت تر لاسه کوي او د راتلونکي وخت په هکله فکر کوي، پوهېږي چې همدغه راتلونکی په خپله غېږه کې د امت لپاره یو نوی سبا لري، د مجاهد دا ډول افکار او وړاندوینې له جادو او علم الغیب له ادعاو نه شمېرل کیږي.

[1] - صحیح مسلم

داسې ښکارې لکه چوپتیا چې له یو مجاهد سره خبرې کوي او وايي: "هر څه ځنډېدلي او درېدلي دي، ایا دا به غوره نه وي چې جګړه هېره کړای شي او د ټوکو په اړه فکر وکړل شي؟"
خو دا مهال یوازې بې تجربې مجاهد خپله وسله غورځوي، ارام کوي او له ستړیا شکایت کوي.
مجاهد د چوپتیا په عالم کې وخت لري، چې د شپې له مخې قدم ووهي او د ډاډ وړ هغه نښه یاده ساتي چې وايي: "که ته چېرته د کومې مرغۍ او یا حیوان غږونه اورې نو پوه شه چې خطر نژدې دی".
کله چې نور خلک خبرې کوي، مجاهد د وسلې د استعمال مهارتونه او د سپېڅلتیا بشپړتیا په واک کې راولي او خپلې سترګې له افقه نه اړوي.
د جګړې حرکت او خوځښت زیات ځواک زېږوي او بیا داسې وخت منځ ته راځي، چې فتح او ماتې دواړه ممکن وي، یوازې وخت کولای شي ووايي، چې چا وګټله او څوک مات شو خو مجاهد پوهېږي، چې دا شېبه هېڅ نه شي کولای، ځکه چې د جګړې پایله د الله تعالی(ﷻ) په لاس کې ده، په داسې شېبو کې مجاهد له دې کبله نه ځورېږي، چې د جګړې نتیجه به څه وي، بلکې په ټوله کې په دې اړه هېڅ فکر نه کوي.
مجاهد پوهېږي چې الله تعالی عز وجل په قرآن کې فرمایلي:
﴿إِنَّ اللَّهَ عِنْدَهُ عِلْمُ السَّاعَةِ وَيُنَزِّلُ الْغَيْثَ وَيَعْلَمُ مَا فِي الْأَرْحَامِ وَمَا تَدْرِي نَفْسٌ مَاذَا تَكْسِبُ غَدًا وَمَا تَدْرِي نَفْسٌ بِأَيِّ أَرْضٍ تَمُوتُ إِنَّ اللَّهَ عَلِيمٌ خَبِيرٌ﴾[1]
ژباړه: (بې شکه د قیامت علم یوازې له الله(ﷻ) سره دی او نازلوي الله تعالی(ﷻ) باران او معلوم دي الله تعالی(ﷻ) ته هغه څه چې په رحمونو د مېندو کې دي (چې ښځه ده او که نارینه) او نه پوهېږي هېڅوک چې سبا به څه کوي او نه

[1] - لقمان: ٣٤



پوهېږي هېڅ نفس چې په کومه ځمکه کې به مري، بې شکه الله تعالی(ﷻ) په دې شیانو ښه عالم او خبردار دی).
همدا راز رسول کریم(صلی الله علیه وسلم) فرمایلي دي:
﴿عَنِ ابْنِ عُمَرَ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ أَتَى عَرَّافًا يَسْأَلُهُ لَمْ تُقْبَلْ مِنْهُ صَلَاةٌ أَرْبَعِينَ لَيْلَةً﴾[1]
ژباړه: (له ابن عمر(رضی الله عنه) څخه روایت دی چې رسول الله(صلی الله علیه وسلم)فرمایلي دي: څوک چې فال بین ته ورشي او پوښتنه ځینې وکړي څلوېښت شپې د هغه لمونځ نه قبلېږي).
مجاهد په احتیاط سره خپل زړه ته غوږ نیسي او له خپل زړه پوښتنه کوي: "ایا دا یو رښتینی جنګ وو؟ ایا ما په رښتیا سره جګړه کوله؟" که چېرته د هغه د زړه ځواب مثبت وي، نو ارام مومي، خو که چېرته ځواب منفي وي، یو ځل بیا وسله را اخلي او له سره ځان جګړې ته چمتو کوي.

[1] - الجامع في الحديث لابن وهب

# ارام

الله تعالی(ﷻ) فرمايي:

﴿فَمَنْ كَانَ مُؤْمِنًا كَمَنْ كَانَ فَاسِقًا لَا يَسْتَوُونَ﴾[1]

ژباړه: (ايا مؤمن او فاسق سره برابر دي؟ بلکې نه دي برابرې دا دواړه ډلې).

کله کله مجاهد د دوه جګړو تر منځ ارام کوي، خو کله د څو پرله پسې ورځو لپاره غير فعال وي، کله چې هغه د زړه خبرې مني او غوښتنې يې پوره کوي، سره له دې چې په پرله پسې توګه بدن ته راحت ورکوي، روح او فکر يې بيدار وي او همېشه څار کوي، خو ارام ته اړتيا ليدل کيږي، ځکه که د رباب تارونه هم د تل لپاره کلک وتړل شي، شونې ده چې غلط ساز او اواز وباسي.

هغه مجاهد چې د جګړې پر مهال د جمناسټک او کراټې تمرين کوي، په ناڅاپي ډول د پرېکړې توان له لاسه ورکوي.

خو حقيقت دا دی چې مجاهد ارام ته اړتيا لري، هغه اس چې هره ورځ له خنډونو خېژونه وهي، کېدای شي يوه ورځ ستړی شي او پښه يې ماته شي. هغه لينده چې تارونه يې د يوې شېبې لپاره سست نه کړای شي، هېڅکله هم نه شي کولای له خپل عادي طاقت سره غشی په تېزۍ د خپل هدف په لور ورسوي.

همدا علت دی چې مجاهد کوښښ کوي، د خپل ورځني عادت له مخې ارام وکړي، که څه هم له دې وړاندې د ارام عادي نه وي.

مجاهد له خپلو وروڼو سره په لښکرکوټ کې کېني، هغوی يو بل ته د خپلو

[1] - السجدة:۱۸



بريو په اړه خبرې کوي او راتلونکو انصارو وروڼو ته د زړه له کومې ښه راغلاست وايي، هر يو په خپل ژوند او په رښتينې جګړه کې د برخې اخيستلو له کبله وياړي.

مجاهد د خپل الهام او جذباتو، د نورو د ننګونو د شمېر او د خپلو ځوابونو په باب خبرې کوي، د خپلو پرېکړو او افکارو بحث کوي، چې د دې خبرو پر مهال د مجاهد توري له احساساتو ډک او له تازه تلوسې برخه من وي.

مجاهد ځينې وخت مبالغه زغملای شي، خو ياد لري چې هېڅکله به هم لاپې شاپې له فخر او وياړ سره ګډې نه کړي او هېڅکله به هم په هغو خيالونو باور ونه کړي چې خپله يې جوړ کړي دي.

کله کله مجاهد د يو ماشوم په څېر سلوک کوي، خلک په چرت کې اچوي، او خلک له ياده باسي، چې يو ماشوم بايد خوښي وکړي، لوبې وکړي او ساده پوښتنې وکړي، خو هغه په دې ډول ټولو ساده کارونو کې هوساينه او ارامي مومي.

## دنده

الله(ﷻ)فرمايي:

﴿فَاصْدَعْ بِمَا تُؤْمَرُ وَأَعْرِضْ عَنِ الْمُشْرِكِينَ﴾[1]

ژباړه : (نو ښکاره او په جهر کړه ای محمده ! هغه څه چې ته پرې مامور يې، له مشرکانو مخ واړوه او د دوی ويلو ته التفات مه کوه ).

مجاهد ځانګړې دندې لري او په خپله پوهېږي، چې بايد په سمه توګه يې اداء کړي، کله پرې اوامر راځي، چې بايد پر ځای يې کړي، که څه هم نه پوهېږي چې ولې يې بايد تر سره کړي، ځکه قوماندانان کله کله يو مجاهد ته د يوې دندې يوه برخه سپاري، بې له دې چې هغه سره يې په سمدستي توګه تفصيلات موجود وي.

ځيني وخت مجاهد وايي: "هو ! زه بايد له هرې پرېکړې مخکې په هر څه پوه شم، زه غواړم چې د نظر په بدلولو کې ازادي ولرم".

مجاهد د دې خبرو په معنا د ډېرې واړخطايی په حالت کې پوهېږي، دا سمه ده هغه هم کولای شي همدا ډول ازادي ولري، خو بايد دا ازادي يې د خپلو ځانګړو مسئوليتونو او دندو د تر سره کولو مخه ونه نيسي، ځکه ډېر ځله ورته نه وي روښانه چې دغه کار ولې کوي.

[1] ـ الحجر:٩٤



الله تعالى(ﷻ) فرمايي:

﴿مَنِ اهْتَدَى فَإِنَّمَا يَهْتَدِي لِنَفْسِهِ وَمَنْ ضَلَّ فَإِنَّمَا يَضِلُّ عَلَيْهَا وَلَا تَزِرُ وَازِرَةٌ وِزْرَ أُخْرَى وَمَا كُنَّا مُعَذِّبِينَ حَتَّى نَبْعَثَ رَسُولًا﴾[1]

ژباړه: (هر چا چې سمه لار ونيوله نو بې شکه د خپل ځان د ګټې لپاره سم شو او هر څوک چې بې لارې شو نو بې شکه د خپل ځان په ضرر بې لارې کېږي او هېڅوک د بل چا د ګناه بار نه اخلي او مونږ يوې ډلې ته تر هغه وخته عذاب نه ورکوو تر څو مو چې هغوی ته کوم رسول نه وي استولی چې هغوی ته سمه لار بيان کړي).

مجاهد د ابو طلحه[2] خبرو ته حيرانېږي، کله چې هغه ته خليفه حضرت عثمان بن عفان(رضی الله عنه) امر وکړ، چې د يوې بحري غزا لپاره ځان چمتو کړي، زامنو يې ورته وويل:

"ای پلار ! الله(ﷻ) دې پر تا ورحميږي، ته يو عمرخوړلی او سپين ږيری سړی يې، د رسول الله(صل الله عليه وسلم)، ابو بکر او عمر(رضی الله عنهما ) سره دې په غزاګانو کې برخه اخيستې، اوس هغه وخت راغلی چې ته بايد ارام وکړې او مونږ به ستا پر ځای جهاد کوو ".

طلحه ځواب ورکړ:

"الله تعالى فرمايلي دي ﴿انْفِرُوا خِفَافًا وَثِقَالًا وَجَاهِدُوا بِأَمْوَالِكُمْ وَأَنْفُسِكُمْ فِي

[1] ـ الاسراء:١٥

[2] -د ده نوم زيد بن سهل بن الاسود بن حرام بن عمرو بنمالک بن النجار الانصاري الخزرجي دی، په ابو طلحه مشهور دی، ام سليم الغميصاء بنت ملحان په نوم يوې ميرمنې سره يې د نکاح نيت درلود چې هغې ورته اسلام شرط کيښود او مسلمان شو. دغه غزا چې ليکوال ورته اشاره کړې يوه بحري غزا وه چې ابو طلحه پکې ګډون وکړ او د بحر په منځ کې د بېړۍ په شا وفات شو، له وفات اوه ورځې وروسته په يوه جزيره کې خاورو ته وسپارل شو. رسول الله د هغه په اړه ويلي چې په لښکر کې د ابو طلحه اواز له يوې ډلې غوره دی.(ژباړن)

سَبِيلِ اللَّهِ ذَلِكُمْ خَيْرٌ لَكُمْ إِنْ كُنْتُمْ تَعْلَمُونَ﴾ او د دې معنا یوازې همدا ده چې جهاد په ټولو فرض دی، زاړه او ځوانان په کې برابر دي، زموږ لپاره د عمر کوم حد نه دی ټاکل شوی، چې بیا ابو طلحه په همدې جګړه کې په شهادت ورسېد.

رسول الله(صل الله علیه وسلم) فرمایلي دي:

**﴿عن عبد الله بن عباس رضي الله عنهما قال قال رسول الله صلى الله عليه وسلم فيما يرويه عن ربه إنّ اللّه كَتَبَ الحَسَنات والسيئات ثُمّ بيَّن ذلك فَمَن هَمّ بِحَسَنَة فَلَم يَعمَلها كَتَبَها اللّه تَبارَكَ وَتَعالى عندَهُ حَسَنَة كاملة ، وإن هَمّ بها فَعَملها كَتبها اللّه عشر حَسَنات إلى سبعمائة ضِعف إلى أضعاف كثيرة ، وإن هَمّ بسيئة فَلَم يَعملها كَتَبَها اللّه تَعالى عنده حَسَنَة كاملة، وإن هَمّ بها فَعَمِلَها كَتَبَها اللّه سيئَة واحدة﴾**(1)

ژباړه: (عبد الله بن عباس(رضی الله عنهما ) فرمایي چې رسول الله(صل الله علیه وسلم)په هغه حدیث کې چې له الله یې روایت کوي (حدیث قدسي) فرمایي چې: الله(ﷻ) نېکۍ او بدۍ لیکلي دي او بیا یې روښانه کړي دي، نو څوک چې نېکۍ ته اراده وکړي خو تر سره یې نه کړي الله تعالی(ﷻ) هغه ته یوه پوره نېکي لېکي او که چېرته یې نیکۍ ته نیت وکړ او بیا یې تر سره هم کړي نو الله تعالی(ﷻ) ورته لس نېکۍ لېکي تر دې چې دغه نېکۍ یې څو چنده زیاتیږي او اوه سوه چندو ته رسیږي، او تر هغې هم زیات، او که چېرته یو څوک بدۍ ته اراده وکړي خو تر سره یې نه کړي، الله(ﷻ) ورته یوه پوره نېکي لیکي، او که چېرته یې بدۍ ته نیت وکړ او بیا یې بدي تر سره هم کړه، نو الله تعالی(ﷻ) به یې دغه بدي د یوې بدۍ په اندازه ولیکي).

مجاهد پرېکړې کوي او تر سره کوي یې، د هغه روح لکه په اسمان کې د

1 - متفق علیه



وریځو په څېر ازاد دی، خو د هغې لارې په سفر کې د خپلې دندې د تر سره کولو سره تړلی دی، چې خپله یې غوره کړې.

کېدای شي په داسې حالت کې رابیدار شي، چې د هغه لپاره خوشحالوونکې نه وي او یا د داسې خلکو سره خبرو ته اړ شي، چې په علم او معلوماتو کې یې د یو نوک په اندازه زیاتوالی هم نه راولي، خو هغه قرباني ورکوي.

د هغه ملګري وایي "ته ازاد نه یې" خو داسې نه ده، بلکې یو مجاهد ازاد دی او هغه پوهېږي ډېره ستونزمنه ده، چې د خلاصو دروازو په تنور (داش) کې ډوډۍ پخه کړای شي.

# کم ارزښته چارې

الله تعالی(ﷻ) فرمایلي دي:

﴿إِذْ تَلَقَّوْنَهُ بِأَلْسِنَتِكُمْ وَتَقُولُونَ بِأَفْوَاهِكُمْ مَا لَيْسَ لَكُمْ بِهِ عِلْمٌ وَتَحْسَبُونَهُ هَيِّنًا وَهُوَ عِنْدَ اللَّهِ عَظِيمٌ﴾[1]

ژباړه: (کله چې واخیست تاسو دا افک[2] په ژبو خپلو، یو له بله مو پوښتنه کوله او هغه څه به مو ویل چې تاسې ورځخه خبر نه واست او تاسې دغه خبره اسانه ګڼله چې هیڅ ګناه په کې نه شته، حال دا چې دغه خبره د ګناه له جهته په نزد د الله(ﷻ) ډېره لویه ده).

مجاهد خورا محتاط وي، تر دې چې د ډېرو وړو شیانو په اړه هم له احتیاطه کار اخلي، ځکه پوهېږي وړې چارې کولای شي، د هغه په عادي پېښو کې خنډ رامنځ ته کړي، یو پخوانی متل وایي "شیطان په ډېرو وړو او کم ارزښته شیانو کی پټېږي".

1 - النور:۱۵

2 - د بني مصطلق د غزا څخه مدینې منورې ته د راستنېدو پر مهال د افک حادثه پېښه شوی، په کومه کې چې په ام المؤمنین حضرت عایشه رضي الله تعالی عنها تور ولګېد، منافقانو دروغ خبره خپره کړه او ځینې صحابه هم پکې ښکېل شول خو بیا الله تعالی د هغې بي بي د پاکیزګۍ لپاره د سورة النور اتلس ایتونه رانازل کړل چې تفصیل یې د سیرت په کتابونو کې شته، نو دلته یې له یادونې مطلب دا دی چې باید وړو چارو ته هم پاملرنه وشي.



مجاهد د (Lao-Tse) دې خبرې ته سخت ځیر وي چې وایي: "موږ باید د ورځو او ساعتونو معناوې هېرې کړو، بلکې باید په پوره بیدارۍ سره تر ټولو زیات د دقیقو په مفاهیمو ترکیز وکړو".

په دې توګه مجاهد کولای شي یو شمېر ستونزې تر پېښېدو وړاندې حل کړي، په دې ډول چې ډېرو وړو وړو ځیزونو ته په دقت او تفصیل سره ډېره توجه وکړي او په پای کې له سترو ناورینونو ځان وژغوري، خو د دقیقو په تفصیلاتو ترکیز او توجه دا معنا نه لري، چې ګوندې یو څوک دی تنګ نظری وي.

رسول الله(صل الله علیه وسلم) فرمایلي دي:

﴿عن ابن مسعود قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صلى الله عليه وآله وسلم هَلَكَ الْمُتَنَطِّعُونَ قَالَهَا ثَلاثًا﴾[1]

ژباړه: (ابن مسعود(رضی الله عنه) فرمایي چې رسول الله(صل الله علیه وسلم)فرمایلي دي: په خبرو او کارکې تکلف کوونکي هلاک شول دغه وینا یې درې ځلې وکړه).

او نه دا معنا لري چې یوې مسئلې ته دې له خپلې اندازې زیاته توجه وشي، بلکې ډېره پاملرنه کولای شي، د یو تن د ژوند ډېره وړه خوښي او خوشحالي هم روښانه او وځلوي.

مجاهد ښه پوهېږي چې ستر خوبونه د وړو وړو شیانو یوه مجموعه وي، هو به هو د لمر د رڼا په څېر، چې له میلیونونو وړانګو جوړه شوې، هغه پوه دی چې د یوې برخې درز د بلې د بېلېدو سبب جوړېدلای شي او همدا درز له دښمن سره په جګړه کې د مرګ لامل کېدای هم شي، یو وړوکی درز کولای شي د یو چا د سفر مانع شي او د انسان د بدن یوه وړه حجره او رګ کولای شي یو غوښن

1 - صحیح مسلم

انسان له منځه یوسي. له همدې امله مجاهد له هغه شیانو نه بې پروا کیږي، چې ډېر کرته یې خلک ډېر سپک بولي، خو په حقیقت کې داسې نه وي.

کله کله مجاهد له خپل ځان سره سختي کوي، خو دا هغه طریقه ده چې مجاهد یې باید د تل لپاره تعقیب کړي.

د وېرې د یوې غوځوونکې شېبې را یادول هر سهار وېره راولي، ځنډ، ټال او نن سبا کول، یوازې او یوازې کولای شي د مجاهد سینه د دښمن د وار لپاره خلاصه کړي، په همدې سبب مجاهد هېڅکله هم له بابېزه او کم ارزښته شیانو، نه غافله کیږي.



# په ځان باور

مجاهد د تل لپاره چوپ نه شي پاتې کېدای، کله کله پرې شک غالب شي او ځان ترې نه شي خلاصولای، بیا له خپل زړه نه پوښتنه کوي: "ایا زما دا ټول کوښښونه اړین دي؟"، خو زړه یې غلی وي او ځواب نه مومي.

همدغه مهال باید مجاهد په خپله خوښه پرېکړه وکړي، د دې پرېکړې لپاره بیلګه په انبیاء(π) او د هغوی په ملګرو کې لټوي، وینې چې هغوی هم له همدې ډول حالاتو تېر شوي، الله تعالی(ﷻ) په سمه لار کې په همدې توګه ازمایلي دي، د هغوی د حوارییینو په منځ کې داسې خلک هم پیدا شوي چې زړورتیا له لاسه ورکوي، خو بیا الله تعالی(ﷻ) ته په زاریو کې رجوع کوي او له هغه مرسته غواړي.

دا هغه څه دي چې الله تعالی په قرانکریم کې بیان کړي، الله تعالی(ﷻ) په خپل عظیم کتاب کې فرمایلي دي:

**﴿أَمْ حَسِبْتُمْ أَنْ تَدْخُلُوا الْجَنَّةَ وَلَمَّا يَأْتِكُمْ مَثَلُ الَّذِينَ خَلَوْا مِنْ قَبْلِكُمْ مَسَّتْهُمُ الْبَأْسَاءُ وَالضَّرَّاءُ وَزُلْزِلُوا حَتَّى يَقُولَ الرَّسُولُ وَالَّذِينَ آمَنُوا مَعَهُ مَتَى نَصْرُ اللَّهِ أَلَا إِنَّ نَصْرَ اللَّهِ قَرِيبٌ﴾**[1]

ژباړه: (ایا ګمان کوئ تاسې ای مؤمنانو چې تاسې به جنت ته داخل شئ په داسې حال کې چې پر تاسې به د هغو سختیو په اندازه سختۍ نه وي راغلي

[1] - البقرة:۲۱۴

چې له تاسې پر پخوا تېرو شويو خلکو راغلې وې، رسېدلي وې هغوی ته سختۍ او رنځ او په سختيو وازمويل شول تر دې چې د الله(ﷻ) رسول او هغو کسانو چې له رسول سره يې ايمان راوړی وو وويل چې د الله(ﷻ) نصرت او مرسته به کله وي؟ خبر دار شئ ! چې بې شکه مؤمنانو د الله(ﷻ) نصرت نژدې دی).

خو هغوی له خپلې لارې او کاره نه وروسته کېدل، بلکې ثابت او پر مخ روان وو.

هغه مهال چې مجاهد ته ډاډ او يقين نه تر لاسه کيږي، بې له کومې وېرې پر مخ ځي او په پايله کې خپله ورکه مومي، ځکه هغه خپل مقصد پېژني او پر ځان باور لري.



# پر نورو باور

الله تعالی فرمايي:

﴿وَالَّذِينَ اسْتَجَابُوا لِرَبِّهِمْ وَأَقَامُوا الصَّلَاةَ وَأَمْرُهُمْ شُورَى بَيْنَهُمْ وَمِمَّا رَزَقْنَاهُمْ يُنْفِقُونَ﴾[1]

ژباړه: (او هغو کسانو چې د الله بلنه يې ومنله، لمونځ يې قائم کړ، خپل کارونه په مشورې سره کوي او له هغو شيانو چې موږ ورکړي يو څه د الله په لار کې نفقه کوي).

د مجاهد له عاداتو يو دا هم دی، چې په نورو به باور لري، خو د همدې باور له کبله کله له مايوسۍ سره مخ کيږي او کله له پښېمانۍ سره. خو که له يوې خوا پر خلکو له باوره خلاصی ناشونی دی، له بلې خوا مجاهد له مايوسۍ وېره نه لري، ځکه هغه ته د خپلې وسلې قوت او د خپلې ارادې پوخوالی ښه څرګند او د ځواک اندازه معلومه وي، الهي اشارې محسوسوي، پوهېږي چې الله تعالی (ﷻ)خپلو نژدې بندګانو ته د ملائکو په واسطه الهام کوي او بيا دغه الهام د خلکو د نژدې ملګرو په ژبه راووځي.

پوهېږي چې نه شي کولای په يوازې ځان خپله پرېکړه او رايه تر سره کړي، ځکه خو د نورو خلکو د مشورې او رايې هيله من وي، څو له هغوی واوري چې څه بايد وکړي او څه نه.

پر ځان باور او مسئوليت څخه تېښته دوه جلا جلا حالتونه دي، چې مجاهد د دې حالتونو د يو ځای کېدو له وهمه ځان ژغوري، مجاهد له دې امله پر نورو باور کوي، چې لومړی هغه پر خپل ځان باور لري. کله له خپلو ماتحتانو اوري چې وايي: "دا څومره ساده او غافل دی"، بلکې مجاهد پوهېږي چې هغه

[1] - الشوری:۳۸

بريالی دی، د هرې ماتې شاته دوه بري پراته وي، چې د الله(ﷻ) په رحمت باور لرونکي يې په مفهوم پوهېږي.

رسول الله(صل الله عليه وسلم)به د خدای پاماني پر مهال فرمايل:

﴿عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا وَدَّعَ رَجُلًا أَخَذَ بِيَدِهِ فَلَا يَدَعُهَا حَتَّى يَكُونَ الرَّجُلُ هُوَ يَدَعُ يَدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ،وَيَقُولُ اسْتَوْدِعِ اللَّهَ دِينَكَ وَأَمَانَتَكَ وَآخِرَ عَمَلِكَ﴾[1]

ژباړه: (ابن عمر رضي(رضی الله عنه) فرمايي کله به چې رسول الله(صل الله عليه وسلم)له يو چا سره خدای پاماني کوله نو د هغه سړي لاس به يې په خپل لاس کې ونيو او تر هغې به يې نه پرېښود تر څو به چې هغه سړي د رسول الله(صل الله عليه وسلم)لاس نه وو پرې ايښی او رسول الله(صل الله عليه وسلم)به ورته فرمايل: خپل دين ، امانت او وروستی عمل دې د الله(ﷻ) سره وساته ).

مجاهد د باور وړ وي، کله چابک قدمونه اخلي او کله داسې فکر کوي چې زيات مهم دی، خو په دواړو حالتونو کې درواغجن نه دی، کله چې له خپلو ورونو سره کېني، خبرې ورسره کوي، پوهېږي چې خبرې يې د ملايکو له خوا ليکل کيږي، لکه څرنګه يې چې عمر او کارونه حسابيږي.

کله مجاهد له خپل ځان سره محاسبه کوي او وايي: "زه ولې دومره زياتې خبرې کوم سره له دې چې خپلې خبرې په عمل کې نه شم راوستلای؟ ".

خو د هغه زړه ځواب ورکوي: "کله چې ته د خلکو په مخ کې له خپل نظره په ښکاره ډول دفاع کوې، د دې معنا همدا ده چې له هغوی سره انسجام، همغاړې توب او يو ځای والي کې ژوند کوې ".

کله چې مجاهد پوه شي، د هغه خبرې د ډاډ وړ او رښتينې دي، نو خبرو ته دوام ورکوي.

[1] - جامع الترمذي



# چمتوالی

الله عز وجل فرمايي:

﴿وَأَعِدُّوا لَهُمْ مَا اسْتَطَعْتُمْ مِنْ قُوَّةٍ وَمِنْ رِبَاطِ الْخَيْلِ تُرْهِبُونَ بِهِ عَدُوَّ اللَّهِ وَعَدُوَّكُمْ وَآخَرِينَ مِنْ دُونِهِمْ لَا تَعْلَمُونَهُمُ اللَّهُ يَعْلَمُهُمْ وَمَا تُنْفِقُوا مِنْ شَيْءٍ فِي سَبِيلِ اللَّهِ يُوَفَّ إِلَيْكُمْ وَأَنْتُمْ لَا تُظْلَمُونَ﴾[1]

ژباړه: (او تياری کوئ ای مؤمنانو له کفارو سره د جنګ لپاره څومره چې مو توان وي او څومره چې جمع کولای شئ قوت اسباب د جنګ او د جهاد لپاره روزل شوي اسونه، چې وېروئ تاسې په دې سره د الله(ﷻ) او خپل دښمنان او له دوی پرته نور کسان چې تاسو يې نه پېژنئ، الله(ﷻ) عالم دی په عداوت د هغوی او د هر هغه څه به پوره بدله درکړای شي چې د الله تعالی(ﷻ) په لار کې يې نفقه کوئ، حال دا چې پر تاسې به ظلم ونه کړای شي ).

مجاهد پوهېږي چې جګړې وخت تر بله دريږي او بيا پيلول يې له حکمته نه شمېرل کيږي، ځکه پوهيږي چې بايد د صبر په ګاڼه مزين وي او انتظار وکړي څو خپل پخوانی ځواک يو ځل بيا تر لاسه کړي، ځکه، کله چې د جګړې په ډګر چوپتيا خپره شي، مجاهد د خپل زړه درزا اوري او پوهېږي چې هغه د هيجان او تشنج په حالت کې دی، ناکراره او مضطرب دی.

مجاهد کوښښ کوي چې ژوند يې متوازن وي، له همدې امله وسله بايد چمتو، زړه بايد راضي او ايمان د روح د پارولو په حالت کې وي، ځکه دا هر څه د عمل په اندازه مهم دي، يو چيچنيايي متل وايي "هغه وسله بايد د ټول عمر لپاره وساتی، چې په لومړي ځل دې استعمال کړه ".

رسول الله فرمايلي دي:

[1] - الانفال:٦٠

﴿عَنْ أَبِي عَلِيٍّ ثُمَامَةَ بْنِ شُفَيٍّ أَنَّهُ سَمِعَ عُقْبَةَ بْنَ عَامِرٍ يَقُولُ سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ عَلَى الْمِنْبَرِ يَقُولُ (وَأَعِدُّوا لَهُمْ مَا اسْتَطَعْتُمْ مِنْ قُوَّةٍ آية،) أَلَا إِنَّ الْقُوَّةَ الرَّمْيُ أَلَا إِنَّ الْقُوَّةَ الرَّمْيُ أَلَا إِنَّ الْقُوَّةَ الرَّمْيُ﴾[1]

ژباړه: (له ابو ثمامة بن شفي څخه روایت دی چې عقبة بن عامر(رضی الله عنه) څخه یې اوریدلي هغه به ویل رسول الله په منبر ولاړ و، دا ایت یې ولوست چې وَأَعِدُّوا لَهُمْ مَا اسْتَطَعْتُمْ مِنْ قُوَّةٍ ، بیا یې وویل قوت نښه ویشتل دي، قوت نښه ویشتل دي ، قوت نښه ویشتل دي ).

مجاهد تل یو څه کموالی مومي، له همدې امله د خپل عمر یوه یوه شېبه غنیمت ګڼي، د وخت د تر لاسه کولو کوښښ کوي او نقصان پوره کوي چې راتلونکې جګړې ته چمتو وي.

کله د هغه وسله په لومړۍ جګړه کې ماتېږي، مګر په خپله مجاهد د امکان تر حده د یوې اوږدې مودې لپاره ثابت پاتې کېږي، همدا علت دی چې د خپل قوت او مهارت سپکاوی نه کوي او په اړه یې نه غولېږي، ځکه خو کولای شي له ناخاپي حالاتو ځان وباسي، په دې سبب چې هغه له توقع سره د هر څه د اندازې لګولو وړتیا لري.

ډېر کرته د سترو هیبتناکو پېښو له رامنځ ته کېدو دمخه شیطان علیه اللعنة هغه ته راځي، چې وسوسې ور واچوی د هغه په غوږ کې وایي: "دا مسئله او کار یې په خپل ځای پرېږده، هسې بېهودګي ده"، خو کله چې هېڅ هم نه رامنځ ته کېږي، بیا ورته د یوې وسوسې په توګه وایي: "ټول ځواک دې راټول کړه، او ټول توان دې د دې مسئلې د فیصله کولو لپاره په کار واچوه".

خو مجاهد د شیطان کوښښونو او وسوسو ته غوږ نه نږدي او خپل زړه د الله تعالی(ﷻ) په ذکر ډاډه کوي.

[1] - صحیح مسلم



# مسئولیت

الله تعالی(ﷻ) په قرآنکریم کې فرمایلي دي:

﴿وَلَا تَقْرَبُوا مَالَ الْيَتِيمِ إِلَّا بِالَّتِي هِيَ أَحْسَنُ حَتَّى يَبْلُغَ أَشُدَّهُ وَأَوْفُوا بِالْعَهْدِ إِنَّ الْعَهْدَ كَانَ مَسْئُولًا﴾[1]

ژباړه: (د یتیم مال ته مه نژدې کېږئ، مګر په ښې طریقې سره، تر هغه وخته چې یتیم بلوغ ته ورسېږي او د الله(ﷻ) په ژمنه وفاء وکړئ، بې شکه چې د ژمنې او وعدې په هکله پوښتنه کېدونکې ده).

د مسئولیت د کلمې جرړې د کلمې معنا تشریح کوي، یعنې (د یو کار کولو وړتیا لرل، ځواب ویل او د کار کولو ځواک درلودل)، مسئول مجاهد هغه څوک دی، چې پر یو څه د نظر لرلو او تطبیق وړتیا لري، خو د دې تر څنګ کله په هغه کې د ځواب ویلو استعداد نه وي، دا هغه وخت وي، کله چې د حالاتو غلام شي، کېدونکو پېښو ته ځان تسلیم کړي، ننګونې نه مني او د حالاتو له جریان سره مقابله نه کوي.

په دې ټولو حالاتو کې مجاهد یاد کړي شیان نه هېروي، په ټوله تواضع نصیحتونو ته غوږ نږدي او مرسته قبلوي، د عیسی علیه السلام دا قول همیشه یاد لري چې: "ستا د وینا "هو" باید "هو" او "نه" باید "نه" وي" خو کله چې

[1] - الاسراء: ۳۴

مجاهد مسئوليت ومني بيا په خپله وعده وفاء کوي.
د حضرت عمر(رضی الله عنه) د خلافت په لومړيو کې حضرت سعيد بن عامر بن حذيم الجمحي(φ)[1] هغه ته ورغلو او ورته يې وويل، چې زه تاته نصيحت کوم، حضرت عمر اجازه وکړه او سعيد ورته وفرمايل:
زه تاته نصيحت کوم، چې د خلکو په کارونو کې له الله ووېرېږه او د الله(ﷻ) په کار کې له خلکو وېره مه کوه، ستا قول او فعل بايد يو له بله توپير ونه لري، ځکه ښه خبره هغه ده چې عمل هم ورپسې وي، خپل مخ او پرېکړه دې هغه چاته مخامخ کړه چې الله تعالی(ﷻ) يې چارې تاته سپارلې، که هغه لرې مسلمانان دي او که نژدې، هغوی ته هغه څه غوره کړه، چې د ځان او خپلې کورنۍ لپاره يې خوښوې، هغه څه ورته بد وګڼه، چې د ځان او خپلې کورنۍ لپاره يې بد ګڼې، که پوه شوې نو د حق لپاره خورا سختيو ته هم ولاړ شه، د الله(ﷻ) په لار کې د ملامتوونکي له ملامتيا مه وېرېږه.
عمر(رضی الله عنه) وفرمايل:
ای ابو سعيده! څوک د دا ډول کړنو توان لري؟
حضرت سعيد ځواب ورکړ:
ستا په څېر خلک يې کولای شي، چاته چې الله تعالی(ﷻ) د محمد(صل الله عليه وسلم) د امت چارې سپارلې وي، د هغه او د الله(ﷻ) تر منځ بل هېڅوک هم نه وي.
حضرت عمر وفرمايل: يوازې له الله تعالی(ﷻ) مرسته غوښتل کيږي.
هغه کسان چې له خلکو سره وعده کوي خو وفا پرې نه کوي، په حقيقت کې د خپلو ځانونو سپکاوی کوي او د خپلو کارونو له کبله له خجالت سره مخ

[1] - حضرت سعيد بن عامر الجمحي يو جليل القدر صحابي دی چې د حضرت عمر بن الخطاب د خلافت پر مهال د حمص والي وو او د هجرت په شلم کال وفات شوی دی.



کيږي، د دا ډول کسانو ګرد ژوند د باطل په لار کې له پای ته نه رسېدونکو منډو څخه ډک وي، خپل ځواک د خپلو کړو وعدو او خبرو لپاره د عذرونو په پيدا کولو او وړاندې کولو مصرفوي، خو د دوی د توان زيان د هغه ځواک له زيانه زيات وي، چې مجاهد يې د خپلې وعدې په پوره کولو کې په کار اچوي.
کله مجاهد د بې حکمته چارو مسئوليت په غاړه اخلي، چې په پايله کې د اوهامو او خرافاتو په غېږ کې پرېوځي، له همداسې يوې پېښې وروسته، مجاهد دا کړنه نه تکراروي، خو له هغو ژمنو هم وېره نه لري او نه ترې په شا کيږي، چې په غاړه يې اخيستې وي، د مجاهد وعده په ډانګ پېيلې وي او د خپلو ناسمو وعدو مسئوليت په خپله غاړه اخلي.
مسئول مجاهد هغه چاته نه ويل کيږي، چې په يوازې ځان د نړۍ ګرد درانده مسئوليتونه په غاړه واخلي، بلکې مسئول مجاهد هغه څوک دی، چې رامنځ ته شوو ننګونو ته په مناسب وخت ځواب ووايي.

# نفاق

رسول الله(صل الله علیه وسلم)فرمایلي دي:

﴿عن أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّه صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ مَاتَ وَلَمْ يَغْزُ وَلَمْ يُحَدِّثْ بِهِ نَفْسَهُ مَاتَ عَلَى شُعْبَةٍ مِنْ نِفَاقٍ﴾[1]

ژباړه: (ابو هریرة(رضی الله عنه) فرمایي رسول الله(صل الله علیه وسلم)فرمایلي: څوک چې مړ شي او غزا (جهاد ) یې نه وي کړی او نه یې زړه ته د جهاد په هکله خبرې کړې وي نو په یو ډول نفاق کې مړ شوی دی ).

مجاهد خپل کار له هغه چا سره نه شریکوي، چې د هغه لپاره د شر غوښتنه لري، همدا راز هغه چا سره له ناستې پاستې نه تم کیږي، چې د مجاهد لپاره خبر خوښوي، له هغه ډول خلکو څخه هم ځان ساتي چې د مصیبت یا ماتې پر مهال د هغه څنګ پریږدي، ځکه دا ډول درواغجن خلک د مجاهد ځواکمنتیا نه، بلکې د هغه له کمزورۍ خوند اخلي، د مجاهد لپاره د ناورینونو خبرونه خوښوي، د ورورۍ د نصیحتونو تر څادر لاندې کوښښ کوي، چې د هغه مخالفت او دښمنۍ ته په سپکه سترګه وګوري.

الله تعالی(ﷻ) فرمایي:

﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لِمَ تَقُولُونَ مَا لَا تَفْعَلُونَ﴾[2]

ژباړه: (ای مؤمنانو ! ولې هغه څه وایئ چې نه یې کوئ).

1 - صحیح مسلم

2 - الصف:۳



دا هغه کسان دي کله چې مجاهد په ټپي حالت کې ووینې پر هغه د شفقت او خواخوږۍ اوښکې تویوي او په زړه کې خوښي پټوي، ځکه چې مجاهد د خپل دښمن په وړاندې تاواني شوی وي، خو دا ډول کسان نه پوهیږي، که څه هم مجاهد جګړه بایللې، مبارزه یې نه ده بایللې.

پاک نبي(صل الله علیه وسلم) فرمایلي دي:

﴿عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ آيَةُ الْمُنَافِقِ ثَلَاثٌ إِذَا حَدَّثَ كَذَبَ وَإِذَا اؤْتُمِنَ خَانَ وَإِذَا وَعَدَ أَخْلَفَ﴾[1]

ژباړه : (ابو هریرة(رضی الله عنه) وایي چې رسول الله(صل الله علیه وسلم) فرمایلي دي د منافق نښې درې دي، په خبرو کې درواغ وایي، چې په یو څه کې امین وګڼل شي (باور پرې وشي) نو خیانت کوي او چې وعده وکړي نه یې پوره کوي).

مجاهد د تل لپاره د سختۍ او اسانۍ، غم او خوشحالۍ په حالت کې په خپله خوا کې صادق، ربښتیني او نصیحت کوونکي ملګري ساتي.

1 - صحیح البخاري

# ازادي

الله تعالی(ﷻ) فرمايلي دي:

﴿الَّذِينَ آمَنُوا يُقَاتِلُونَ فِي سَبِيلِ اللَّهِ وَالَّذِينَ كَفَرُوا يُقَاتِلُونَ فِي سَبِيلِ الطَّاغُوتِ فَقَاتِلُوا أَوْلِيَاءَ الشَّيْطَانِ إِنَّ كَيْدَ الشَّيْطَانِ كَانَ ضَعِيفًا﴾ [1]

ژباړه: (مؤمنان د الله په لار کې او کافران د شیطان په لار کې جګړه کوي، نو تاسو د شیطان له ملګرو سره جګړه وکړئ، بې شکه چې د شیطان مکر کمزوری دی).

رسول الله(صل الله علیه وسلم) فرمايلي دي:

﴿عن أَبِي عَبْسٍ هُوَ عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ جَبْرٍ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَا اغْبَرَّتْ قَدَمَا عَبْدٍ فِي سَبِيلِ اللَّهِ فَتَمَسَّهُ النَّارُ﴾[2]

ژباړه: (ابو عبس وايي رسول الله فرمايلي: نه خيرنيږي پښې د يو بنده د الله په لار کې چې بيا ورته اور هم ورسيږي (يعنې د چا پښې چې د الله(ﷻ) په لار کې خيرنې شي نو اور ورته نه رسيږي)).

مجاهد هېڅکله هم د "ازادۍ" د توري په لومه کې نه ايساريږي، که چېرته د هغه قوم او ملت ځپل شوی وي، نو بيا د ازادۍ په لار کې قرباني يوه څرګنده

[1] - النساء:۷٦

[2] -صحيح البخاري



اړتيا ده. کله چې مجاهد وسله را اخلي او د ازادۍ په لار کې جګړه کوي، شعار يې وي چې "مرګ او يا ژوند"، د ځورونې او کړونې په مقابل کې ازادي د پېژندنې وړ او اسانه لفظ دی، ځکه چې ازادي د بندګۍ او غلامۍ ضد ده.

کله مجاهد د قوم له سپين ږيرو او سپين سرو اوري چې وايي: "کله چې کار او دنده بس کړم، نو ډېره ازادي به تر لاسه کړم"، خو همدا خلک پر تقاعد د يو کال له تېريدو وروسته شکايت پيل کړي او وايي: "ژوند ډېر پيکه، ستړی کوونکی، مړاوی او بې خونده تېريږي"، بايد پوه شو چې دا مهال ازادي بله معنا لري يعنې: "د احساساتو نشتوالی".

مجاهد هېڅکله هم خپل ځان ازاد نه ګڼي، هغه ازاد دی چې څه غواړي ويې وکړي، خو بيا هم د رحيم او رحمن ذات بنده او غلام دی.

# مذاکرات

الله تعالی(ﷻ) فرمایلي دي:

﴿وَإِنْ جَنَحُوا لِلسَّلْمِ فَاجْنَحْ لَهَا وَتَوَكَّلْ عَلَى اللَّهِ إِنَّهُ هُوَ السَّمِيعُ الْعَلِيمُ﴾ [1]

ژباړه: (او که کفار سولې ته میلان څرګند کړي نو ته هم ورمایل شه او توکل وکړه په الله(ﷻ)، بې شکه چې الله تعالی(ﷻ) ښه اوریدونکی او ښه عالم دی).

مجاهد نه شي کولای د تل لپاره په یوازې ځان د جګړې میدان غوره کړي، بلکې کله په ناڅاپي توګه راګېرېږي، د داسې یوې جګړې درشل ته رسېږي، چې د خوښې خلاف یې وي، خو په دې حالاتو کې د تېښتې کوښښ نه کوي، ځکه پوهېږي چې چېرته هم درومي جګړې به ورپسې ځي، نو کله چې جګړه لازمه او حتمي شي، مجاهد له خپل دښمن سره مذاکراتو او خبرو اترو ته رجوع کوي.

دا مهال هغه د کوم ډول وېرې او خجالت څرګندونه نه کوي او نه د امان غوښتنه کوي، بلکې کوښښ کوي چې د دې هر څه اسباب ومومي لکه: دښمن ولې دې جګړې ته لېواله دی؟ کوم اسباب دي چې هغه یې د خپل کور پرېښودلو ته اړ کړی او په دې راضي شوی، چې زما پر ضد د جګړې لپاره دې ځای ته راشي؟

په دې توګه مجاهد کولای شي له تېکي د خپلې تورې له را ایستلو پرته دښمن قانع کړي، چې جګړه د برید کوونکي په ګټه نه ده.

له بلې خوا به مجاهد ټول هغه څه واوري، چې دښمن یې غواړي هغه ته یې ور واوروي، په دې توګه به جګړې ته د دښمن لېوالتیا سړه شي، بیا نو مجاهد کولای شي یوازې د اړتیا پر مهال په جګړه کې ښکېل شي.

1 - الانفال: ٦١



مجاهد په هره جګړه کې جلا جلا تصرف کوي او په ځانګړې توګه کله چې بریدونه او په شاتګ نه رامنځ ته کیږي، کله چې د جګړې نتیجه نه ګټه وي او نه ماتې، مجاهد دې پایلې ته رسیږي، چې له دښمن سره د موقتي روغې او اوربند د شروطونو په اړه خبرې اترې وکړي، ځکه دواړو خواوو خپل ټول جنګي مهارتونه څرګند کړي وي او هغه وخت رارسېدلی وي، چې باید یو بل وپېژني.

خو په ورته وخت کې هېڅکله هم د امان غوښتنه نه کوي، بلکې مجاهد هغه څوک دی چې نورو ته امان ورکوي، مذاکرات د مجاهد د شرافت، نجابت او وقار نښه ده، نه د هغه د بې زړه توب.

په ځواک کې د انډول رامنځ ته کول، او په عمومي توګه جنګي ستراتیژیو کې بدلون راوستل، هغه څه دي چې له امله یې مقابل لوري د ژمنو له پنډونو سره راوړاندې کیږي، هغه ډول مذاکرات او وړاندیزونه کوي، چې په زړه کې وسوسې پنځوي او هغه ډول اختیارات وړاندې کوي چې دواړو خواوو ته د منلو وړ وي.

خو مجاهد هر وړاندیز په ډېر دقت او زیرکتیا سره مطالعه کوي، په ورته وخت کې کوښښ کوي څو داسې یوې موافقې ته ورسیږي، چې خپل عزت او کرامت له لاسه ورنه کړي، که چېرته د دا ډول خبرو په پایله کې مجاهد د جګړې له ډګره ووځي، دا معنا نه لري، چې ګوندې هغه د دښمن په خوږو خبرو وغولېد، بلکې مجاهد په دې باور وي، چې همدا تر ټولو ښه ستراتیژي ده.

مجاهد کله هم له خپل دښمن څخه هېڅ ډول ډالۍ نه قبلوي او د اوربند د ټولو نقشو له چمتو کولو وروسته خپل کور ته راستنیږي، ولو که دا هر څه د خلکو لپاره هېڅ هم نه ښکاري، خو مجاهد یوه رښتیني جګړه پر مخ بیایي، چې دا یې یوه برخه ده.

پایله دا شوه چې د جګړې دواړو خواوو تنازل وکړ، خو مجاهد په هغه اندازه وکړ، چې اسلامي شریعت یې اجازه ورکوي او دا هر څه د مذاکراتو په فن کې د مهارت په رڼا کې تر سره شول.

# احتياط

الله(ﷻ) فرمايلي دي:

﴿وَلَا تَقْفُ مَا لَيْسَ لَكَ بِهِ عِلْمٌ إِنَّ السَّمْعَ وَالْبَصَرَ وَالْفُؤَادَ كُلُّ أُولَئِكَ كَانَ عَنْهُ مَسْئُولًا﴾[1]

ژباړه: (او په هغه کار پسې مه ځه چې تا ته ورباندې پوره پوهه نه وي حاصله، بې شکه چې له غوږونو، سترګو او زړه ټولو نه پوښتنه کېدونکې ده).

مجاهد دهغه چا په اړه له ډېر احتياطه کار اخلي، چې فکر کوي په سمه لار بلد دی، همدغه خلک د تل لپاره په دې باوري وي، چې د پرېکړو د کولو وړتيا لري، ځکه هغوی نه پوهېږي چې تقدير د هر يو لپاره څه ليکلي، خو کله چې حتمي تقدير د هغوی دروازې وټکوي، بيا خپل ځان رسوا او شرمنده ويني.

مجاهد د تل لپاره دوه ډوله خوبونه ويني[2] او همدا خوبونه يې لارښوونه کوي، خو هېڅکله هم په دې شک کې نه پريوزي چې لار اسانه او دروازې پرانيستې دي.

ځينې وخت د کار کولو وي، خو ځينې وخت بيا د حالاتو او اوضاع د ځرنګوالي د قبلولو، چې مجاهد د دې دواړو تر منځ فرق پېژني او پرې پوهېږي.

---

1 -بني اسرائيل:٣٦

2 -يعنی د هرې پريکړې پر مهال دوه فکرونه لري، يوه لار ورته اسانه او بله ستونزمنه ښکاري چې د ليکوال اشاره همدې دوه فکرونو ته خو په ورته وخت کې يې خپلې پريکړې هم متوجه کوي.



# کينه

الله تعالی(ﷻ) فرمايلي:

﴿قُلْ أَعُوذُ بِرَبِّ الْفَلَقِ * مِنْ شَرِّ مَا خَلَقَ * وَمِنْ شَرِّ غَاسِقٍ إِذَا وَقَبَ * وَمِنْ شَرِّ النَّفَّاثَاتِ فِي الْعُقَدِ * وَمِنْ شَرِّ حَاسِدٍ إِذَا حَسَدَ﴾[1]

ژباړه: (ووايه ای محمده! پناه غواړم په رب د صبا (څيروونکي د تيارې باندې)، له شره د هغه ضررناکو شيانو چې پيدا کړي يې دي او له شره د تيارې شپې کله چې تکه توره شي او هر شی پټ کړي، او له شر د هغو ښځو چې په غوټو کې سحر پو کوي او له شره د هر حسد کوونکي کله چې خپل حسد ښکاره کړي).

رسول الله(صل الله عليه وسلم)فرمايلي دي:

﴿عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِيَّاكُمْ وَالظَّنَّ فَإِنَّ الظَّنَّ أَكْذَبُ الْحَدِيثِ وَلَا تَحَسَّسُوا وَلَا تَجَسَّسُوا وَلَا تَحَاسَدُوا وَلَا تَدَابَرُوا وَلَا تَبَاغَضُوا وَكُونُوا عِبَادَ اللَّهِ إِخْوَانًا﴾[2]

ژباړه: (ابو هريرة(رضی الله عنه) وايي چې رسول الله(صل الله عليه وسلم)فرمايلي له ګومانه ځان وژغورئ ځکه چې ګومان په خبرو کې تر ټولو سخت دروغ دي، د چا د ښو په اړه هم جاسوسي مه کوئ او د چا د بديو په هکله هم پلټنې مه کوئ، کينه مه ساتئ، يو بل ته شا مه ور اړوئ، په خپلو منځو کې بغض مه کوئ، د الله تعالی(ﷻ) داسې بنده ګان و اوسئ چې په خپلو کې سره ورونه ياستئ).

---

1 -الفلق

2 -صحيح البخاري

مجاهد پوهېږي څو چې يو انسان کينې ته خپل ځان تسليم نه کړي، تر هغه وخته حسد هېڅ ډول شر او زيان نه شي رسولای، خو بيا هم رخه د انساني ژوند يوه برخه ده او هر انسان بايد خپله رخه او حسد په خپل واک کې وساتي.

دغه راز مجاهد پوهېږي چې توري قوت لري، خو ډېر لږ د خپلو پروګرامونو او پلانونو په اړه خبرې کوي، چې له همدې امله کله کله يو شمېر خلک هغه د حسد او کينې څخه وېرېدونکی بولي، خو مجاهد باور لري، که د خپلو پروګرامونو په اړه وغږېږي د خپلې خوارۍ يوه برخه له منځه وړي او يو څوک چې د همېشه لپاره دا ډول خبرې کوي، بايد په بشپړه توګه د خپلې خوارۍ د بې ځايه تګ وېره ولري، ځکه چې په دې توګه به هغه ته د عملي کولو لپاره هېڅ طرحه هم ورپاتې نه شي.

رسول الله(صل الله عليه وسلم) فرمايي:

﴿عَنْ ابْنِ مَسْعُودٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ لَا حَسَدَ إِلَّا فِي اثْنَتَيْنِ رَجُلٍ آتَاهُ اللَّهُ مَالًا فَسَلَّطَهُ عَلَى هَلَكَتِهِ فِي الْحَقِّ وَرَجُلٍ آتَاهُ اللَّهُ حِكْمَةً فَهُوَ يَقْضِي بِهَا وَيُعَلِّمُهَا﴾[1]

ژباړه: (ابن مسعود(رضی الله عنه) وايي له رسول الله(ﷻ) مې اورېدلي چې فرمايل يې: له دوه څيزونو پرته بل هېڅ شي کې حسد نه دی روا، يو له هغه چا سره چې الله تعالی(ﷻ) مال ورکړی وي او هغه يې د حق په کارونو کې مصرفوي او دوهم هغه سړی چې الله(ﷻ) علم ورکړی وي په هغې باندې پرېکړې کوي او نورو ته يې هم ورزده کوي).

1 -صحيح البخاري



# مېړانه

الله تعالی(ﷻ) فرمايي:

﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِذَا لَقِيتُمْ فِئَةً فَاثْبُتُوا وَاذْكُرُوا اللَّهَ كَثِيرًا لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ * وَأَطِيعُوا اللَّهَ وَرَسُولَهُ وَلَا تَنَازَعُوا فَتَفْشَلُوا وَتَذْهَبَ رِيحُكُمْ وَاصْبِرُوا إِنَّ اللَّهَ مَعَ الصَّابِرِينَ﴾[1]

ژباړه: (ای مؤمنانو کله چې له دښمن له کومې ډلې سره مخ شئ نو ثابت قدم اوسئ او مه ترې تښتئ او الله(ﷻ) ډېر يادوئ، ښايي چې د دښمن په مقابل کې بريالي شئ، د الله(ﷻ) او د هغه د رسول(صل الله عليه وسلم) حکم ومنئ، د جهاد د کارونو په اړه په خپلو منځو کې جګړې مه کوئ، ځکه چې په دې سره به تاسې بې زړه شئ، باد به مو لاړ شي، قوت به مو ختم شي، صبر کوئ بې شکه الله(ﷻ) له صابرانو سره دی).

مجاهد د ثبات او زړورتيا فضيلت او لوړوالی پېژني، د هر سړي لپاره مناسبه ده، چې د مېړانې په زېور مزين وي، څو په پوره وقار او عزت سره په سمه لار ولاړ شي.

حضرت ابو عبيدة بن الجراح د يرموک[2] د جګړې پر مهال د معرکې له پيله مخکې، د دواړو لښکرو د مخامخ کېدو په وخت کې پاڅېد او مسلمانانو ته يې وعظ پيل کړ:

"د الله(ﷻ) بندګانو ! د الله مرسته وکړئ الله(ﷻ) به ستاسې مرسته وکړي، او

1 - الانفال:٤٥

2 -د يرموک غزا د مسلمانانو او روميانو تر منځ د هجرت په ديارلسم کال د يرموک له نهر سره نژدې رامنځته شوه ، دغه نهر د اوسنۍ سوريې او فلسطين تر منځ سيمه کې بهيږي.

قدمونه به مو ثابت کړئ، ای د مسلمانانو ټولګیه ! صبر وکړئ، ځکه چې صبر له کفره ژغورونکی، د رب د رضا سبب، د شرم او عار محوه کوونکی دی. له خپلو صفونو مه جلا کېږئ، هغوی ته یو قدم هم مه ور وړاندې کېږئ، له دښمن سره د جګړې پیل مه کوئ، نېزې مو را وباسئ، په ډالونو ځانونه پناه کړئ، چوپتیا غوره کړئ، مګر د الله(ﷻ) له ذکره نه او د الله(ﷻ) یادونه هم له ځان سره کوئ څو زه تاسې ته امر وکړم".
بیا د رومیانو له لښکره یو تن راووت او له مسلمانانو یې د مبارز غوښتنه وکړه، د مسلمانانو له لښکره یو تن راووت، څو له نوموړي رومي سره مبارزه وکړي، د (ازد ) د قبیلې یو کشر هلک، چې عمر یې له شلو کلونو هم کم و، هېڅا هم نه پېژانده، ابو عبیدة بن الجراح ته ورغلو او ورته یې وویل:
"ای ابو عبیدة ! ما اراده کړې چې زړه یخ کړم، د خپل او اسلام د دښمن پر ضد جهاد وکړم، د الله(ﷻ) په لار کې خپل ځان قرباني کړم، کېدای شي شهادت مې په برخه شي، ایا اجازه راکوې؟ "
یو ځل یې بیا پوښتنه وکړه "ایا ماته اجازه کوې، چې ووځم او د دې سړي سره مقابله وکړم؟ "
د ځوان خبرو د ابو عبیدة زړه ولړزولو او ورته یې وویل:
"ور ووځه، ور ووځه " کله چې ځوان د جنګ ډګر ته د وتلو نیت وکړ، بېرته ابو عبیدة ته راوګرځید او داسې یو څه یې ورته وویل چې ابو عبیدة یې وژړولو ، ځوان وویل:
"ای ابو عبیدة ! ایا رسول الله(صل الله علیه وسلم)ته څه ویل غواړې؟ "
له دې امله چې ځوان شهادت ته روان و ، ابو عبیدة دومره وژړل چې ږیره یې لمده شوه .
ابو عبیدة ځواب ورکړ:
"رسول الله(صل الله علیه وسلم)ته زما سلام ورسوه او خبر یې کړه، مونږ هغه څه



وموندل چې الله تعالی(ﷻ) یې له مونږ سره ژمنه کړې وه ".
نوموړی ځوان جګړې ته ننوت او شهید شو.
ډېر کرته مجاهد د دښمن له خوا له ناڅاپي ګوزارونو او بریدونو سره مخ کیږي او د جنګ د دوام په ترڅ کې مجاهد پوهېږي، چې دښمن به یو شمېر وړې جګړې وګټي، د داسې پېښو د رامنځ ته کېدو له امله مجاهد یو څه خواشینی کیږي، خو بیا د یوې لږې مودې لپاره ارامیږي (ارام کوي)، څو مستریح او خپل ځواک بیا تر لاسه کړي، د خپلې عقیدې او ازادۍ په لار کې یو ځل بیا په جګړه لاس پورې کوي، ځکه باوري وي په کومه اندازه چې له جګړې لرې کیږي، هماغومره به ځان د کمزورۍ، بې زړه توب او ډار سره نژدې مومي.
هغه اس سپور چې له اسه وغورځیږي، خو په سمدستي توګه بېرته په اس د سپرېدو لپاره خېز نه کړي، له همدې کبله به ورسره مېړانه خیانت کوي او بیا به هېڅکله هم پر سپرېدو ونه توانیږي.

# خپلواکي

الله جل شانه په خپل کتاب کې فرمايلي دي:

**﴿وَلَا تُطِعْ كُلَّ حَلَّافٍ مَهِينٍ، هَمَّازٍ مَشَّاءٍ بِنَمِيمٍ﴾**[1]

ژباړه: (نو ته د هر ډېر قسم خوړونکي، سپک، عيب ويونکي او په چغلۍ سره د تلونکي خبره مه منه).

مجاهد خپل ارزښت پېژني او تر کومه چې هغه د خپل ايمان او الهي الهام له خوا راهنمايي کيږي، تر هغې پورې په هر هغه څه کې، چې غواړي ويې کړي او يا يې ونه کړي، پرېکړه کوونکی او قاطع وي، خو کله کله د ځينو خلکو له خوا يو داسې کار ته رابلل کيږي، چې مجاهد يې بد ګڼي، ورڅخه خبر نه وي او ورته په زړه پورې نه وي، دا شمېر خلک کوښښ کوي مجاهد قانع کړي، څو هغه ننګونې ومني، چې د هغوی لپاره پرېکړه کوونکې او ګټورې وي، نه د مجاهد لپاره.

ډېر ځله همدا ډول خلک مجاهد ته تر ټولو نژدې وي، مينه ورسره لري، د هغه قوت ورته څرګند وي او د خپل ځان لپاره د هغه د مرستې غوښتونکي وي، خو کله چې مجاهد خپل ځان په داسې حال کې ومومي، يوه معنا خېژه مسکا وکړي او داسې کوښښ کوي، هغوی قانع کړي، سره له دې چې مينه ورسره لري، دې غوښتنې ته يې ځواب نه شي ويلای، ځکه مجاهد د تل لپاره د جګړې ډګر په خپله خوښه ټاکي، هغه خپلواک وي.

[1] - القلم: ١٠-١١



# شهيدان

الله(ﷻ) فرمايلي دي:

**﴿إِنَّكَ مَيِّتٌ وَإِنَّهُمْ مَيِّتُونَ﴾**[1]

ژباړه: (بې شکه چې ته هم مړ کېدونکی يې او بې شکه دوی هم مړه کېدونکي دي).

رسول الله عليه السلام فرمايلي دي:

**﴿عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اللَّهُ تَبَارَكَ وَتَعَالَى أَنَا أَغْنَى الشُّرَكَاءِ عَنِ الشِّرْكِ مَنْ عَمِلَ عَمَلًا أَشْرَكَ فِيهِ مَعِي غَيْرِي تَرَكْتُهُ وَشِرْكَهُ﴾**[2]

ژباړه: (ابو هريرة(رضی الله عنه) وايي چې رسول الله(صل الله عليه وسلم) فرمايلي دي الله تعالی(ﷻ) فرمايي زه د شريکانو له منځه، له شرکه ډېر مستغني يم، څوک چې په کوم کار کې له ما سره بل څوک هم شريک کړي، زه دغه انسان او د هغه شرک پرېږدم يعنی د هغه عمل نه قبلوم او هغه شريک ته يې پرېږدم چې له ما سره يې جوړ کړی دی).

مجاهد د مرګونو د صدمو د زغملو په فن پوهېږي، کله چې له ماتې سره مخ شي، نو دغه ماتې شاته نه غورځوي او ځان ترې جلا نه بولي، داسې نه وايي چې "پېښه شوه او لاړه، نور نو ماته اهميت نه لري"، او يا داسې چې "نه غواړم په دې کې دوهم ځل فکر وکړم"، دا ځکه يو رښتينی مجاهد ماتې د ماتې په توګه مني او کوښښ نه کوي ماتې يې د بري په څېر څرګنده شي.

[1] - الزمر: ٣٠

[2] - صحيح المسلم

{إنا لله وإنا إليه راجعون}

هغه پوهېږي چې ټپونه څه ډول دردونه زېږوي، که د ملګرو د تجاهل تراخه پېژني، نو د یو نژدې دوست له لاسه ورکولو وروسته زېږېدلی یوازیتوب هم پېژني، دا مهال مجاهد خپل ځان ته وایي "ما جګړه وکړه او د ماتې د ترخو غړپ مې وکړ، لومړی جګړه مې له لاسه ورکړه، خو ټول جنګ مې نه دی بایللی، دا یوازې د الله تعالی(ﷻ) له لوري یو امتحان دی".

الله تعالی(ﷻ) فرمایلي دي:

﴿إِذْ هَمَّتْ طَائِفَتَانِ مِنكُمْ أَنْ تَفْشَلَا وَاللَّهُ وَلِيُّهُمَا وَعَلَى اللَّهِ فَلْيَتَوَكَّلِ الْمُؤْمِنُونَ﴾[1]

ژباړه: (او کله چې ستاسې له منځه دوه ډلو قصد وکړ چې له جنګه بې زړه او له جهاده په شا شي، حال دا چې الله(ﷻ) د دوی مرستندوی و او مؤمنان دې خاص پر الله(ﷻ) توکل وکړي).

دا کلمې مجاهد ته د یو نوي ځواک او قوت الهام کوي، ځکه پوهېږي داسې څوک نه شته، چې په هر څه کې بریالی وي. دا مهال کولای شي، چې خپلو تېروتنو ته د نامناسبو حالاتو او ظروفو نوم ورکړي او په دې ډول د یوې نوې جګړې د پیل لپاره چمتوالی نیسي، د ملګرو شهادت د مجاهد په لار کې نه خنډ کېږي.

1 - ال عمران:۱۲۲



# افکار

الله عز وجل فرمایي:

﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا اجْتَنِبُوا كَثِيرًا مِنَ الظَّنِّ إِنَّ بَعْضَ الظَّنِّ إِثْمٌ وَلَا تَجَسَّسُوا وَلَا يَغْتَبْ بَعْضُكُمْ بَعْضًا أَيُحِبُّ أَحَدُكُمْ أَنْ يَأْكُلَ لَحْمَ أَخِيهِ مَيْتًا فَكَرِهْتُمُوهُ وَاتَّقُوا اللَّهَ إِنَّ اللَّهَ تَوَّابٌ رَحِيمٌ﴾[1]

ژباړه: (ای مؤمنانو ! له ډېرو بد ګمانیو او تهمتونو ځان وساتئ، بې شکه ځینې بد ګومانونه او تهمتونه ګناه ده، د نورو خلکو پټ عیبونه مه لټوئ او په خپل منځ کې یو د بل غیبت مه کوئ، ایا یو له تاسې خوښوي چې د خپل مړ ورور غوښه وخوري، بلکې بده یې ګڼئ او له الله نه ووېرېږئ، بې شکه الله توبه قبلوونکی او رحم والا دی).

مجاهد درک لري، هر کله چې یو انسان د یو بد کار د کولو اراده وکړي، شا او خوا هر څه یې د هغه په وړاندې ښایسته شي، همدا دلیل دی، چې هغه د خپلو فکرونو په اړه خورا محتاط وي، ځکه چې د هر نېک نیت او فکر شا ته داسې احساسات وي، چې یو څوک یې د ځان لپاره نه خوښوي، د بېلګې په توګه، کرکه، د خپل ځان د ماتې میلان، ګناه، د ماتې وېره، د نورو په ویجاړوونکې بدمرغۍ د خوشحالۍ میلان او داسې نور.

1 - الحجرات:۱۲

رسول الله(صل الله علیه وسلم)فرمایلي دي:

﴿عن أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِيَّاكُمْ وَالظَّنَّ فَإِنَّ الظَّنَّ أَكْذَبُ الْحَدِيثِ الخ﴾[1]

ژباړه: ( د ابو هریرة(رضی الله عنه) څخه روایت دی چې رسول الله(صل الله علیه وسلم) فرمایلي دي له شک څنې ځان وژغورئ ځکه چې شک او ګومان په خبرو کې تر ټولو ستر دروغ دي).

پر خپل ځان د بري په لړ کې الله تعالی(ﷻ) له موږ سره مرسته کوي، له همدې امله مجاهد کولای شي خپله زړورتیا وساتي او په پوره ژورتیا سره د خپل ذات د تیاره کونجونو لېدنه وکړي، څو مطمئن او باوري شي، چې د خپل نفس د کومې غوښتنې په طلب کې نه دی. مجاهد همېشه له خپلو فکرونو وېره لري، او په اړه یې له احتیاطه کار اخلي.

[1] - صحیح البخاري



## الهام

الله(ﷻ) فرمایلي دي:

﴿فَقَاتِلْ فِي سَبِيلِ اللَّهِ لَا تُكَلَّفُ إِلَّا نَفْسَكَ وَحَرِّضِ الْمُؤْمِنِينَ عَسَى اللَّهُ أَنْ يَكُفَّ بَأْسَ الَّذِينَ كَفَرُوا وَاللَّهُ أَشَدُّ بَأْسًا وَأَشَدُّ تَنْكِيلًا﴾[1]

ژباړه: (نو جنګ کوه ته په لار د الله(ﷻ) کې، ته یوازې د خپل ځان په حق مکلف کړای شوی یې او هڅوه مؤمنان په جهاد، نژدې ده چې الله(ﷻ) د کفارو د جنګ مخه ونیسي او د الله(ﷻ) هیبت او عذاب ډېر سخت دی).

مجاهد د خپلې نړۍ کارونه له خپلو ملګرو او دوستانو سره شریکوي، په دې ډول کوښښ کوي هغوی ته هغه نېکۍ الهام کړي، چې کولو ته یې لېوال وي، خو عزم نه لري، همدا مهال ابلیس لعین راځي، وسوسې پیلوي او وایي: "د خپل ځان په اړه فکر وکړه، لومړی او تر ټولو دمخه په ځان رحم وکړه او کنه نو په پای کې به هر څه له لاسه ورکړې، ته لا څوک یې چې د نورو مرسته هم کوې؟ ایا نه شې کولای د خپل ځان عیبونه ووینې؟ ایا غواړې هغه کار وکړې، چې نور ترې عاجز دي؟".

مجاهد پوهېږي چې ضعف او نیمګړتیاوې لري، احساسوي چې له خپلو ورونو په جلا توګه خپل ځان نه شي روزلای، خو په خشوع، خضوع او دوامدار ذکر ځان د شیطان له لسمون او وسوسو ژغورلای شي، څو خپلو ورونو ته د خېر پر لار ښوونه دوام وکړي.

الله تعالی(ﷻ) په خپل کتاب کې فرمایي:

﴿يَا أَيُّهَا النَّبِيُّ حَرِّضِ الْمُؤْمِنِينَ عَلَى الْقِتَالِ إِنْ يَكُنْ مِنْكُمْ عِشْرُونَ صَابِرُونَ

[1] - النساء: ۸٤

﴿يَغْلِبُوا مِائَتَيْنِ وَإِنْ يَكُنْ مِنْكُمْ مِئَةٌ يَغْلِبُوا أَلْفًا مِنَ الَّذِينَ كَفَرُوا بِأَنَّهُمْ قَوْمٌ لَا يَفْقَهُونَ﴾[1]

ژباړه: (ای نبي (محمد(صل الله عليه وسلم) ! مؤمنان د کفارو پر ضد جنګ ته تشويق کړه، که له تاسې شل کسان صبر کوونکي او ثابت قدم وي نو په دوه سوه کافرانو به غالب شي او ستاسې له جملې سل تنه به په زرو کافرانو غلبه ومومي، ځکه چې دغه قوم نه پوهېږي).

يوه ورځ مجاهد په دې پوهېږي، چې له پخواني الهامه د لرې والي په حالت کې جګړه کوي او کله چې له خپل نيمګړي طبعيت سره مل شهوتونه را يادوي، نهايي کوښښ کوي چې د مصيبتونو پر مهال غلی او چوپ پاتې شي، له دې سره سره د خير هغه کارونه اوس هم تر سره کوي، چې پخوا يې کول، خو بيا هم ورته خپل جذبات بې معنا بريښي، بلکې حق دا دی، چې هغه سيلاب اخيستی، کوم لور يې چې وړي هغسې ځي.

په دې ډول حالاتو کې يوازېنی پاتې شيز چې بايد تر سره شي د يوې رښتېنې جګړې په حدودو کې پر دښمن بريدونه کول او جګړې ته دوام ورکول دي، مهمه نه ده چې د خپلو کړنو لپاره اسباب ولټوي، خو په هېڅ صورت کې له سمې لارې نه کږېږي.

مجاهد احساسوي، هغه ملايکه چې په الهامونو يې خوښ ساتلو، تللې ده، خو له دې سره د خپل روح ټول ځواک د جګړې لور ته اړوي، ځکه مجاهد په خپل کار ټينګار کوي، ولو که نښې څرګندوي چې ګټه نه لري.

د يوې لنډې مودې له تېرېدو وروسته د هغه ملايکه بېرته راستنيږي، چې د وزرو رپا يې په روح کې د نېکمرغۍ د شيندلو لپاره بسنه کوي.

[1] - الانفال:٦٥



# مرسته

الله تعالی(ﷻ) فرمايلي:

﴿وَتَعَاوَنُوا عَلَى الْبِرِّ وَالتَّقْوَى وَلَا تَعَاوَنُوا عَلَى الْإِثْمِ وَالْعُدْوَانِ وَاتَّقُوا اللَّهَ إِنَّ اللَّهَ شَدِيدُ الْعِقَابِ﴾[1]

ژباړه: (او مرسته کوئ تاسې يو تر بله په نېک کار او تقوی کې، په ګناه او تجاوز کې مرسته مه کوئ او وېرېږئ له الله تعالی(ﷻ) څخه بې شکه چې د الله(ﷻ) عذاب ډېر سخت دی).

رسول الله(صل الله عليه وسلم)فرمايلي دي:

﴿عَنْ بُسْرِ بْنِ سَعِيدٍ عَنْ زَيْدِ بْنِ خَالِدٍ الْجُهَنِيِّ عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ قَالَ مَنْ جَهَّزَ غَازِيًا فِي سَبِيلِ اللَّهِ فَقَدْ غَزَا وَمَنْ خَلَفَهُ فِي أَهْلِهِ بِخَيْرٍ فَقَدْ غَزَا﴾[2]

ژباړه :(بسر بن سعيد د زيد بن خالد الجهني(رضی الله عنه) څخه روايت کوي چې هغه له رسول الله(صل الله عليه وسلم)څخه اورېدلي چې فرمايلي يې دي: څوک چې يو غازي (مجاهد ) سمبال کړي، نو هغه غزا وکړه او څوک چې د يو غازي له کورنۍ سره مرسته وکړي، د خير پوښتنه يې وکړي، هغه هم غزا وکړه ).

مجاهد خپلې مرستې بې له غوښتنې وړاندې کوي، کله چې د هغه ملګري دا حالت ويني د تبصرې په توګه وايي: "هر څوک بايد د خپلې اړتيا غوښتنه وکړي"، خو رښتينی مجاهد دا احساس لري چې په دنيا کې ډېر خلک له يو چا

[1] - المائدة:٢

[2] -صحيح المسلم

د مرستي غوښتنه نه شي کولای.
همدا ډول د هغه په چاپېريال کې ډېر د نري او حساس زړه څښتنان ژوند کوي، هغه مينه او احساسات چې هغوی يې تر لاسه کوي ډېر کم او دردوونکي وي، همدغه خلک ناز او مينې ته اړتيا لري، خو هغوی يې څرګندونه نه کوي، چې له همدې امله يې مجاهد د لښکرکوټ د اور شا او خوا راټولوي او هغوی ته خوشحالوونکې کيسې کوي، له هغوی سره خپله توښه شريکوي، ټوکې ورسره کوي، خوشحالوي يې او د هغوی د ښو کارونو ستاينه کوي، چې له همدې امله هغوی په بله ورځ ځانونه خوشحاله، لېواله او مضبوط احساسوي.
رسول الله(صل الله عليه وسلم)فرمايلي دي:
**﴿عَنْ أَبِي مُوسَى الْأَشْعَرِيِّ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَطْعِمُوا الْجَائِعَ وَعُودُوا الْمَرِيضَ وَفُكُّوا الْعَانِيَ﴾**[1]
ژباړه : (له ابو موسى الاشعري(رضی الله عنه) څخه روايت دی چې رسول الله(صل الله عليه وسلم)فرمايلي دي وږي ته ډوډۍ ورکړئ، د ناروغ پوښتنه وکړئ او بندي ازاد کړئ).
هغه خلک چې د خپلو ورونو غم او مصيبت يې نه خفه کوي، په خپله په يو ستر مصيبت کې دي.

[1] - سنن ابو داؤد



# نظر

الله(ﷻ) فرمايلي:
**﴿قُلْ لِلْمُؤْمِنِينَ يَغُضُّوا مِنْ أَبْصَارِهِمْ وَيَحْفَظُوا فُرُوجَهُمْ ذَلِكَ أَزْكَى لَهُمْ إِنَّ اللَّهَ خَبِيرٌ بِمَا يَصْنَعُونَ﴾**[1]
ژباړه: (وو ايه ای محمده(صل الله عليه وسلم)! مؤمنانو ته چې له نامحرمو دې خپلې سترګې ټيټې کړي، خپل فرجونه وساتئ ځکه چې د دوی لپاره دا کار ډېر ګټور او پاک دی، بې شکه الله(ﷻ) په هغه کارونو ښه خبر دی چې دوی يې کوي).
الله جل شانه په يو بل ځای کې فرمايي:
**﴿يَعْلَمُ خَائِنَةَ الْأَعْيُنِ وَمَا تُخْفِي الصُّدُورُ﴾**[2]
ژباړه: (الله تعالی(ﷻ) ته خاينې سترګې او هغه نيت چې سينې يا زړونه يې پټوي معلوم دي).
مجاهد خپلې سترګې له بې اړتيا او بدو کتلو ساتي، يو پوه او حکيم سړي ويلي: "هغه څه چې ستا سترګې يې نه ويني، ستا زړه به يې هېڅکله هم ونه غواړي او هر هغه څه چې ستا زړه يې نه غواړي، اړتيا به يې هېڅکله هم تا ته زيان ونه رسوي".

[1] - النور:٣٠
[2] - غافر:١٩

# توبه

الله تعالی(ﷻ) فرمايي:

**﴿وَتُوبُوا إِلَى اللَّهِ جَمِيعًا أَيُّهَا الْمُؤْمِنُونَ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ﴾** [1]

ژباړه: (او تاسې ټول الله(ﷻ) ته ای مؤمنانو توبه وباسئ، دې لپاره چې خلاصی ومومئ).

مجاهد پوهېږي چې له توبې او پښېمانۍ غفلت، انسان په خپله غېږه کې نيسي او فلج کوي يې، سوکه سوکه د ظالم روح فاسدوي، چې په ورو ورو يې له منځه يوسي، خو مجاهد نه غواړي، چې په دې حالت کې مړ شي، کله چې يو بد کار وکړي، تېر وځي، يا د يو چا په حق کې تېروتنه وکړي او تر څو چې پوهېږي کمزوري او نيمګړتياوې پرې حاوي دي د بخښنې په غوښتلو هېڅ شرم نه محسوسوي.

رسول کريم (صل الله عليه وسلم) فرمايلي دي:

**﴿عَنِ ابْنِ عُمَرَ ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ، قَالَ إِنَّ اللَّهَ يَقْبَلُ تَوْبَةَ الْعَبْدِ مَا لَمْ يُغَرْغِرْ﴾** [2]

ژباړه: (ابن عمر(رضی الله عنه) له رسول الله(صل الله عليه وسلم)څخه روايت

[1] - النور: ۳۱

[2] - جامع الترمذي



کوي چې فرمايلي يې دي الله تعالی(ﷻ) تر هغې د بنده توبه قبلوي، تر څو پورې يې چې ساه مرۍ ته نه وي راغلي (يعنې د زنکدن حالت ته نه وي رسيدلی)).

او که چېرته وخت د هغه په واک او ګټه نه وي، د خپلې وسې په اندازه کوښښ کوي، هغه تېروتنې چې ورڅخه شوې سمې کړي او څه چې يې خراب کړي اصلاح کړي، خو که چېرته د خپل حق څښتن وفات شوی وي، مجاهد يې بدله د احسان او نېکۍ په شکل کې يو بل نا اشنا تن ته ورکوي.

مجاهد هېڅکله هم له توبې، نه غافله کيږي او نه پرېږدي چې افسوس يې شل او شوټ کړي، بلکې همېشه د خپلو تېروتنو د اصلاح کوښښ کوي.

# تېروتنې

رسول الله(صل الله عليه وسلم) فرمايلي دي:

**﴿عن أنس بن مالك قال قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دَعْ مَا يَرِيبُكَ إِلَى مَا لَا يَرِيبُكَ﴾**[1]

ژباړه: (د انس بن مالک(رضی الله عنه) څخه روايت دی رسول الله(صل الله عليه وسلم)فرمايلي دي هغه څه چې تا په شک کې اچوي د هغه څه په مقابل کې پرېږده چې شک درته نه پېښوي).

مجاهد په هغو کارونو چې په نقصدي ډول څنې شوي، خپل ځان نه ملامتوي، خو د خپلو تېروتنو له کبله خپل ځان ته برآت او عذرونه هم نه وړاندې کوي، ځکه دا ډول وضعيت هغه مهال رامنځ ته کيږي، چې يو څوک خپله لار او اسلوب نه شي سمولای.

الله تعالی(ﷻ) فرمايلي:

**﴿يُثَبِّتُ اللَّهُ الَّذِينَ آمَنُوا بِالْقَوْلِ الثَّابِتِ فِي الْحَيَاةِ الدُّنْيَا وَفِي الْآخِرَةِ وَيُضِلُّ اللَّهُ**

1 - مسند احمد بن حنبل



**الظَّالِمِينَ وَيَفْعَلُ اللَّهُ مَا يَشَاءُ﴾**[1]

ژباړه: (الله تعالی په ژوندون د دنيا او اخرت کې مؤمنان په ثابته خبره کلکوي او ښويوي الله(ﷻ) ظالمان او الله(ﷻ) هر هغه څه کوي چې اراده يې وفرمايي).

کله چې مجاهد په کلک او سم نظر ځان سمبال کړي، د خپلو کارونو په نتايجو کې فکر کوي او وايي: "زما په کار کې لاربښوونې پايلې لري، نه نيتونه".

مجاهد د خپل هر عمل مسئول دی، ولو که هغه د خپلو تېروتنو په اصلاح کې د يو ډېر قيمتي څيز مصرفولو ته هم اړ شي، يو عربي متل وايي: "الله تعالی(ﷻ) د مېوې له نظره پر يوه ونه پرېکړه کوي، د ونې ولو (پلو) ته نه ګوري".

1 - ابراهيم:۲۷

# پایلې

الله تعالی(ﷻ) فرمایي:

﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِنْ تَنْصُرُوا اللَّهَ يَنْصُرْكُمْ وَيُثَبِّتْ أَقْدَامَكُمْ﴾[1]

ژباړه: (ای مؤمنانو ! که له الله(ﷻ) سره مرسته وکړئ نو هغه به له تاسې سره مرسته وکړي (قدمونه به مو ثابت کړي)).

رسول الله(صل الله علیه وسلم) فرمایلي دي:

﴿عَنْ مُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صلى الله عليه وسلم أَنَّهُ قَالَ الْغَزْوُ غَزْوَانِ فَأَمَّا مَنِ ابْتَغَى وَجْهَ اللَّهِ وَأَطَاعَ الإِمَامَ وَأَنْفَقَ الْكَرِيمَةَ وَيَاسَرَ الشَّرِيكَ وَاجْتَنَبَ الْفَسَادَ فَإِنَّ نَوْمَهُ وَنَبْهَهُ أَجْرٌ كُلُّهُ وَأَمَّا مَنْ غَزَا فَخْرًا وَرِيَاءً وَسُمْعَةً وَعَصَى الإِمَامَ وَأَفْسَدَ فِي الأَرْضِ فَإِنَّهُ لَمْ يَرْجِعْ بِالْكَفَافِ﴾[2]

ژباړه: (معاذ بن جبل(رضی الله عنه) له رسول الله(صل الله علیه وسلم)څخه روایت کوي چې هغه فرمایلي دي: غزاګانې په دوه ډوله دي، چا چې د الله(ﷻ) رضا وغوښتله، د امام (مشر) فرمانبرداري یې وکړه، غوره څیز یې مصرف کړ، د خپل کار له شریک سره یې اساني وکړه له فساد څینې یې ځان وژغورلو، نو د هغه ویښه او خوب ټول اجر دی، خو هغه چا چې د فخر، ریاء او شهرت لپاره

[1] - محمد:۷

[2] - سنن ابو داؤد



غزا وکړه، د امام نافرماني یې وکړه او په ځمکه کې یې فساد وکړ، هغه ته به دغه غزا هېڅ ډول ګټه او اجر و نه رسوي).

مجاهد له یوې مهمې پرېکړې وړاندې، برابره ده که دغه پرېکړه د جنګ اعلان وي، که یو بل ځای ته نقلېدل او که د کښت لپاره د پټیو انتخاب وي (چې نور نو بزګري پیلوي)، له خپل ځانه پوښتنه کوي: "د دې کار اغېز به پر مسلمانانو، زما پر اولادونو او زوزات څه وي؟".

مجاهد پوهېږي چې هر کار په لرې ابعادو کې اغېزې لري، هغه غواړي وپوهېږي چې د خپلو لمسیانو او زوزات لپاره څه ډول ژوند او څه ډول دنیا په میراث پرېږدي، ځکه نو د کارونو پایلې ته ګوري او پایلو ته اهمیت ورکوي.

# ډار

الله(ﷻ) په خپل سپېڅلي کتاب کې فرمايلي:

﴿وَيَحْلِفُونَ بِاللَّهِ إِنَّهُمْ لَمِنْكُمْ وَمَا هُمْ مِنْكُمْ وَلَكِنَّهُمْ قَوْمٌ يَفْرَقُونَ * لَوْ يَجِدُونَ مَلْجَأً أَوْ مَغَارَاتٍ أَوْ مُدَّخَلًا لَوَلَّوْا إِلَيْهِ وَهُمْ يَجْمَحُونَ﴾[1]

ژباړه: (او قسمونه کوي په الله(ﷻ) چې دوی ستاسې له ډلې دي، حال دا چې دوی ستاسې له ډلې نه دي، بلکې دوی يو ډارن قوم دی، که چېرته دوی د پناه ځای، کوم غار يا بل د ننوتلو ځای ومومي، نو خامخا به ورته ورګرځېدلي وای، په داسې حال کې چې د مسلمانانو له وېرې به يې منډې وهلې).

رسول الله(صل الله عليه وسلم) فرمايلي دي:

﴿عَنْ عَبْدِ الْعَزِيزِ بْنِ مَرْوَانَ قَالَ سَمِعْتُ أَبَا هُرَيْرَةَ يَقُولُ سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ شَرُّ مَا فِي رَجُلٍ شُحٌّ هَالِعٌ وَجُبْنٌ خَالِعٌ﴾[2]

ژباړه: (عبد العزيز بن مروان وايي له ابو هريرة(رضی الله عنه) څخه مې اورېدلي چې ويل يې: له رسول الله(صل الله عليه وسلم) څخه مې واورېدل چې فرمايل يې: په سړي کې تر ټولو بد شی هغه بخل دی چې جزعه فزعه ورسره ملګرې وي او بل زړه ويستونکی ډار دی).

بې زړه او ډارنو خلکو ته نړۍ ډاروونکې او ګواښوونکې برېښي او د غولوونکي امنيت د لټون پر مهال داسې ژوند کوي، چې نه خو څوک ننګوي او نه ننګونه قبلوي، همدغه بې زړه او ډارن خلک به په ټول او هر ډول سامان الاتو سمبال وي، څو د هر هغه چا په وړاندې ودرېږي چې د دوی ملکيت ته لاس

1 - التوبة:۵۷

2 - سنن ابو داؤد



وړاندې کوي او دفاع يې وکړي، خو په حقيقت کې هغوی له خپل ملکيته دفاع نه شي کولای، بې زړه او ډارن خلک د خپل زندان ديوالونه په خپله جوړوي.

الله تعالی(ﷻ) فرمايلي:

﴿أَيْنَمَا تَكُونُوا يُدْرِكْكُمُ الْمَوْتُ وَلَوْ كُنْتُمْ فِي بُرُوجٍ مُشَيَّدَةٍ وَإِنْ تُصِبْهُمْ حَسَنَةٌ يَقُولُوا هَذِهِ مِنْ عِنْدِ اللَّهِ وَإِنْ تُصِبْهُمْ سَيِّئَةٌ يَقُولُوا هَذِهِ مِنْ عِنْدِكَ قُلْ كُلٌّ مِنْ عِنْدِ اللَّهِ فَمَالِ هَؤُلَاءِ الْقَوْمِ لَا يَكَادُونَ يَفْقَهُونَ حَدِيثًا﴾[1]

ژباړه: (هر چېرته چې اوسئ مرګ به درته راشي، اګر که په ډېرو لوړو او محکمو برجونو او کلاګانو کې ياست، که دوی ته څه ښېګڼه ورسيږي نو وايي چې د الله(ﷻ) له خوا ده او که بدي ورته ورسيږي نو وايي چې دا بدي ستا له اړخه راورسېده، ورته ووايه ای محمده! دا ټول خير او شر د الله(ﷻ) له اړخه رسېږي، نو په دې قوم څه شوي چې په هېڅ خبره نه پوهېږي).

مجاهد ډارن نه وي، هغه ته د خپل مرګ وخت اهميت نه لري، ځکه هغه ترې خبر نه دی، مګر د هغه لپاره مهمه دا ده چې مرګ به يې په کوم حالت کې وي، مجاهد لېوال وي چې خپل سفر په پوره برم او درننبت سره بشپړ کړي او ابدي جنت ته داخل شي.

1 - النساء:۷۸

# یادونه

الله تعالی(ﷻ) فرمایي:

﴿فَإِذَا قُضِيَتِ الصَّلَاةُ فَانْتَشِرُوا فِي الْأَرْضِ وَابْتَغُوا مِنْ فَضْلِ اللَّهِ وَاذْكُرُوا اللَّهَ كَثِيرًا لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ﴾[1]

ژباړه: (هر کله چې د جماعت لمونځ اداء کړای شي، نو د الله(ﷻ) په ځمکه کې خپاره شئ او د الله(ﷻ) فضل ولټوئ او الله(ﷻ) ډېر یادوئ ښایي چې کامیاب شئ).

رسول الله(صل الله علیه وسلم) فرمایلي دي:

﴿عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَكْثِرُوا ذِكْرَ هَاذِمِ اللَّذَّاتِ﴾[2]

ژباړه :( ابو هریرة(رضی الله عنه) ویلي رسول الله(صل الله علیه وسلم)وفرمایل چې د خوندونو د پرې کوونکي او ماتوونکي یادونه ډېره کوئ (یعنې د مرګ) ).

مجاهد د هوښیارانو دا خبرې یادې لرې چې وایي:

"کله چې په سختیو بریالیتوب تر لاسه کړې، بیا هغه سختۍ او ستونزې مه یادوه چې په دې لار کې دې ګاللي دي، بلکې دا نېکمرغي یاده کړه، چې وتوانېدې دا هر څه دې په بشپړ شرافت او سرلوړۍ سره وزغمل. کله چې ته له یو نه رغېدونکي مرضه روغ شې، هغه دردونه مه یادوه چې تېر کړي دې دي، بلکې د الله تعالی(ﷻ) دا رحمتونه را په زړه کړه چې تاته یې شفاء درکړه. د خپل ژوند تر وروستیو شېبو پورې هغه ښه شیان یاد لره، چې تاته د سختیو له کبله

[1] - الجمعة: ۱۰
[2] - جامع الترمذي



حاصل شوي دي، همدا به ستا د ثابت پاتې کېدلو لپاره امتحانونه وي، چې تاته د نویو سختیو له راتګ وړاندې د اقدام او حل لپاره وخت درکوي".

پخواني، زاړه او چټې احساسات د انسان په یادښت کې راټولیږي، همدغه یادونه هغه زاړه او پخواني دردونه دي، چې اوس بې ګټې دي، دا هغه احتیاطونه دي چې یو مهال به مهم وو خو نن ورځ هېڅ ارزښت نه لري.

مجاهد خپلې خاطرې لري، هغه کولای شي چې ناوړه یادونه او خاطرې له سمو جلا او بې ګټې، پخواني او دردوونکي یادونه وغورځوي.

مجاهد هڅه نه کوي، هغه څه احساس کړي چې پخوا یې احساسول، هغه د بدلون پلوی وي او نه غواړي په نوې لار کې یې دا ډول یادونه او احساسات ملګري شي، خو یو چیچنیایي متل وایي: "چا چې ماضي په ټوپک وویشتله، مستقبل به یې په توپ وولي"، معنا دا چې له دې هر څه سره سره مجاهد خپله ماضي هم نه هېروي، بلکې له خپلې ماضي څخه د مستقبل لپاره درسونه تر لاسه کوي.

# خپګان

رسول الله(صل الله علیه وسلم)فرمایلي دي:

﴿عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ، قَالَ لِأَبِي طَلْحَةَ الْتَمِسْ غُلَامًا مِنْ غِلْمَانِكُمْ يَخْدُمُنِي حَتَّى أَخْرُجَ إِلَى خَيْبَرَ فَخَرَجَ بِي أَبُو طَلْحَةَ مُرْدِفِي وَأَنَا غُلَامٌ رَاهَقْتُ الْحُلُمَ فَكُنْتُ أَخْدُمُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا نَزَلَ فَكُنْتُ أَسْمَعُهُ كَثِيرًا يَقُولُ اللَّهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنَ الْهَمِّ وَالْحَزَنِ وَالْعَجْزِ وَالْكَسَلِ وَالْبُخْلِ وَالْجُبْنِ وَ ضَلَعِ الدَّيْنِ وَغَلَبَةِ الرِّجَالِ الخ﴾[1]

ژباړه: (له انس بن مالک څخه روایت دی چې رسول الله(صل الله علیه وسلم)ابو طلحه ته وویل : ماته ستاسې له هلکانو څخه یو هلک پیدا کړه، څو تر هغه وخته چې زه خیبر ته ځم زما خدمت وکړي، ابو طلحه ورته زه را وویستلم، چې زه به د رسول الله(صل الله علیه وسلم)په سپرلۍ شاته کېناستلم ، زه نوی ځوانۍ ته رسېدلی هلک وم، چې رسول الله به چېرته پړاو اچولو، ما به یې خدمت کولو، ما به ورڅخه ډېر ځله اورېدل چې ویل به یې: ای الله(ﷻ) زه په تا باندې پنا غواړم د خپګان، غم، عاجزۍ، سستۍ، بخل، بې زړه توب، د قرض د دروندوالي او د خلکو له غلبې څخه ).

د خپګان او غم په حالاتو کې کله کله مجاهد ته خپل زړه وایي:

"هغه ژوندي را په زړه کړه، چې د ناڅرګندو اسبابو له کبله یې دنیا پرېښوده، ته لا تر اوسه پورې پاتې یې، په سمه لار ثابت قدم یې او جنګیږې، ولې الله تعالی(ﷻ) دغه کافران واخیستل خو ته یې وانه اخیستې؟

ته وګوره ! مېلیونونه او بېلیونونه خلک مایوسه او ناهیلي شوي، دوی خو نه

[1] - صحیح البخاري



په زړونو کې د غم او غوسې احساس کوي او نه ژاړي، دوی نور هېڅ نه کوي، بلکې یوازې او یوازې د خپل نوبت او وخت انتظار باسي، دوی د حوادثو په وړاندې د غبرګون ښودلو توان له لاسه ورکړی دی، خو ته د دوی په څېر نه یې، بلکې ته غمژن یې، ستا غم او خپګان د دې څرګندونه کوي، چې ستا روح ویده او بې حسه نه دی".

مجاهد د غم او خپګان په وړاندې د الله تعالی(ﷻ) په ذکر سره مدد تر لاسه کوي.

رسول الله(صل الله علیه وسلم)فرمایلي دي:

﴿عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ لَزِمَ الِاسْتِغْفَارَ جَعَلَ اللَّهُ لَهُ مِنْ كُلِّ ضِيقٍ مَخْرَجًا وَمِنْ كُلِّ هَمٍّ فَرَجًا وَرَزَقَهُ مِنْ حَيْثُ لَا يَحْتَسِبُ﴾.[1]

ژباړه : (عبد الله بن عباس(رضی الله عنهم) وایي چې رسول الله(صل الله علیه وسلم) فرمایلي: څوک چې استغفار ډېر وایي الله تعالی(ﷻ) به هغه ته له هرې سختۍ د وتلو لار اسانه کړي، له هر غمه به خلاصی ورکړي او په داسې ډول به روزي ورکړي چې ګمان به یې هم نه وي-یعنی د روزۍ طرف به یې په خوا او خاطر کې هم نه ګرځي).

[1] - سنن ابو داؤد

الله تعالی(ﷻ) فرمايلي:

﴿إِنَّ الَّذِينَ يُحِبُّونَ أَنْ تَشِيعَ الْفَاحِشَةُ فِي الَّذِينَ آمَنُوا لَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ فِي الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ وَاللَّهُ يَعْلَمُ وَأَنْتُمْ لَا تَعْلَمُونَ﴾[1]

ژباړه: (بې شکه هغه کسان چې خوښوي په مؤمنانو کې بدنامي خپره شي، د هغوی لپاره په دنيا او اخرت کې دردناک عذاب دی او الله(ﷻ) ښه عالم دی او تاسې نه پوهېږئ ).

حضرت محمد (صل الله عليه وسلم) فرمايلي دي:

﴿عَنْ مُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ قَالَ كُنْتُ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي سَفَرٍ فَأَصْبَحْتُ يَوْمًا قَرِيبًا مِنْهُ وَنَحْنُ نَسِيرُ فَقُلْتُ يَا نَبِيَّ اللَّهِ أَخْبِرْنِي بِعَمَلٍ يُدْخِلُنِي الْجَنَّةَ وَيُبَاعِدُنِي مِنَ النَّارِ قَالَ لَقَدْ سَأَلْتَ عَنْ عَظِيمٍ وَإِنَّهُ لَيَسِيرٌ عَلَى مَنْ يَسَّرَهُ اللَّهُ عَلَيْهِ تَعْبُدُ اللَّهَ وَلَا تُشْرِكُ بِهِ شَيْئًا وَتُقِيمُ الصَّلَاةَ وَتُؤْتِي الزَّكَاةَ وَتَصُومُ رَمَضَانَ وَتَحُجُّ الْبَيْتَ ثُمَّ قَالَ أَلَا أَدُلُّكَ عَلَى أَبْوَابِ الْخَيْرِ ؟ الصَّوْمُ جُنَّةٌ وَالصَّدَقَةُ تُطْفِئُ الْخَطِيئَةَ وَصَلَاةُ الرَّجُلِ فِي جَوْفِ اللَّيْلِ ثُمَّ قَرَأَ قَوْلَهُ تَعَالَى تَتَجَافَى جُنُوبُهُمْ عَنِ الْمَضَاجِعِ حَتَّى بَلَغَ جزاء بما كانوا يعملون ثُمَّ قَالَ أَلَا أُخْبِرُكَ بِرَأْسِ الْأَمْرِ

[1] - النور:۱۹



وَعَمُودِهِ وَذُرْوَةِ سَنَامِهِ ؟ فَقُلْتُ بَلَى يَا رَسُولَ اللَّهِ قَالَ رَأْسُ الْأَمْرِ الْإِسْلَامُ وَعَمُودُهُ الصَّلَاةُ وَذِرْوَةُ سَنَامِهِ الْجِهَادُ ثُمَّ قَالَ أَلَا أُخْبِرُكَ بِمِلَاكِ ذَلِكَ كُلِّهِ ؟ فَقُلْتُ لَهُ بَلَى يَا نَبِيَّ اللَّهِ فَأَخَذَ بِلِسَانِهِ فَقَالَ كُفَّ عَلَيْكَ هَذَا فَقُلْتُ يَا رَسُولَ اللَّهِ وَإِنَّا لَمُؤَاخَذُونَ بِمَا نَتَكَلَّمُ بِهِ فَقَالَ ثَكِلَتْكَ أُمُّكَ يَا مُعَاذُ وَهَلْ يَكُبُّ النَّاسَ عَلَى وُجُوهِهِمْ فِي النَّارِ أَوْ قَالَ عَلَى مَنَاخِرِهِمْ إِلَّا حَصَائِدُ أَلْسِنَتِهِمْ؟﴾[1]

ژباړه: (له معاذ بن جبل څخه روايت دی فرمايي چې زه په يو سفر کې له رسول الله(صل الله عليه وسلم)سره وم، يوه ورځ په تګ تګ کې هغه ته نژدې شوم او ورته مې وويل ای د الله نبي ! ماته داسې عمل وښيه چې په کولو سره يې جنت ته داخل شم او له اور نه لرې شم. رسول الله(صل الله عليه وسلم)وفرمايل: تا يوه ډېره ستره پوښتنه وکړه، خو دا هغه چاته اسانه ده چې الله (ﷻ) يې ورته اسانه کړي، د الله تعالی عبادت کوه او شريک ورسره مه نيسه، لمونځ کوه، زکات ورکوه، د رمضان په مياشت کې روژه نيسه او د بيت الله شريف حج کوه، بيا يې وفرمايل ايا تاته د خير د دروازو په هکله معلومات درنه کړم؟ روژه ډال (سپر) دی او صدقه تېروتنې مړې کوي او د شپې په منځ کې د سړي لمونځ کول، بيا يې دا ايت شريف ولوست ﴿تَتَجَافَى جُنُوبُهُمْ عَنِ الْمَضَاجِعِ سورة السجدة آية١٦﴾ تر دې چې د قرآنکريم تر دې برخې ورسېد ﴿جَزَاءً بِمَا كَانُوا يَعمَلُون﴾ بيا يې وفرمايل ايا تاته د امر (دين) د سر او ستنې او تر ټولو لوړ ځای خبر درنه کړم؟

ما ورته وويل چې هو ای د الله رسوله، نو رسول الله وفرمايل چې د (امر) سر اسلام دی او ستنه يې لمونځ دی او تر ټولو لوړ ځای يې جهاد دی، بيا رسول

[1] - مسند احمد بن حنبل

الله وفرمایل ایا تاته داسې یو څه ونه ښیم چې د دې ټولو ملکیت پرې تر لاسه کولای شې، نو رسول الله خپله ژبه راونیوله او ویې فرمایل دا دې وساته.
ما ورته وویل چې د الله رسوله ایا موږ په هغه څه هم نیول کیږو چې وایو یې؟
رسول الله په ځواب کې وفرمایل: مور دې درباندې بوره شي ای معاذه ! ایا نه غورځیږي خلک په اور کې په خپلو مخونو باندې (یا یې وفرمایل چې په خپلو سپوږمو باندې) مګر دا د دوی د ژبو جزاء ده)[1]
رقیب او دښمن په حکمت او عقل سمبال وي، د فرصت په تر لاسه کولو سره بې له ځنډه خپله قوي او وژونکې وسله کاروي، چې هغه دهوکه، دسیسه او چل دی او کله چې هم دښمن دا ډول وسله وکاروي، بیا ډېر کوښښ ته اړتیا نه لري، ځکه نور خلک یې مزدوران شي او د هغه کارونه بل څوک تر سره کوي.
په بې احتیاطۍ سره ستا د ژبې پر سر ښویېدلې توري به ستا د میاشتو میاشتو د اخلاص او انکسارۍ عمل له منځه یوسي، مجاهد ډېر ځله په لومو کې لوېږي، نه پوهېږي چې له کوم لورې پرې برید کیږي او نه پوهېږي چې درواغ څه ډول درواغ ثابت کړي، حیله د دفاع حق نه لري، خو دهوکه او چل بې محکمې خپل حکم صادروي.
الله(ﷻ) فرمایي:
﴿وَاجْتَنِبُوا قَوْلَ الزُّورِ﴾[2]
ژباړه: (له درواغ ویینا ځان وژغورئ).
د اعمالو پایلې د مجاهد په غاړه وي، هر کله چې دسیسه او دهوکه پېښیږي، پر مجاهد نااړینه سزا تپل کیږي، مجاهد دغه سزا ګالي، د خپلې چوپتیا تر شا

[1] -د دسیسې تر عنوان لاندې د دې حدیث راوړل شاهد د حدیث شریث وروستۍ برخه ده، یعنی مجاهد باید خپلې ژبلې ته پاملرنه وکړي او په خپلو خبرو کې له احتیاطه کار واخلي.
[2] - الحج: ۳۰



ځوریږي، خو پر دښمن په ورته وسله برید نه کوي، یعنې درواغ نه وایي، ځکه چې الله رب العزت له درواغو منع کړې.
رسول الله(صل الله علیه وسلم)فرمایلي دي:
﴿عن ْ مَعْقِلِ بْنِ يَسَارٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْعِبَادَةُ فِي الْهَرْجِ كَهِجْرَةٍ إِلَيَّ﴾[1]
ژباړه: (له معقل بن یسار څخه روایت دی چې رسول الله(صل الله علیه وسلم)فرمایلي: د فتنې په وخت کې عبادت کول داسې مثال لري لکه څوک چې زما لور ته هجرت وکړي).
په دې سبب مجاهد خپل ځان الله تعالی رب العالمین ته سپاري او د هغه عبادت کوي.

[1] -صحیح المسلم

# حماقت

الله(ﷻ) په خپل عظیم الشان کتاب کې فرمايي:

﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا مَا لَكُمْ إِذَا قِيلَ لَكُمُ انْفِرُوا فِي سَبِيلِ اللَّهِ اثَّاقَلْتُمْ إِلَى الْأَرْضِ أَرَضِيتُمْ بِالْحَيَاةِ الدُّنْيَا مِنَ الْآخِرَةِ فَمَا مَتَاعُ الْحَيَاةِ الدُّنْيَا فِي الْآخِرَةِ إِلَّا قَلِيلٌ، إِلَّا تَنْفِرُوا يُعَذِّبْكُمْ عَذَابًا أَلِيمًا وَيَسْتَبْدِلْ قَوْمًا غَيْرَكُمْ وَلَا تَضُرُّوهُ شَيْئًا وَاللَّهُ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ﴾[1]

ژباړه: (ای مؤمنانو ! څه علت دی چې کله تاسې ته وویل شي د الله(ﷻ) په لار کې د جهاد لپاره ووځئ ځمکې ته درانده شئ (نه ځئ) ایا تاسې د اخرت په پرتله په دنیوي ژوند او نعمتونو راضي شوئ یاست، خو پوه شئ چې د اخرت په وړاندې د دنیا له ژوند څخه ګټه پورته کول ډېر کم دي، که چېرته د هغه په لار کې د "غزا " لپاره ونه وځئ نو الله(ﷻ)به تاسې ته دردناک عذاب درکړي او ستاسې پر ځای به بل قوم راولي، تاسو به هغه ته هیڅ زیان ونه شئ رسولای، او الله(ﷻ) په هر شي ښه قادر دی).

یو عربي متل وايي: "لیوني ته زرعقلونه ورکړه بیا به هم ستا عقل ته اړ وي"، خو د جهاد لپاره راوتلی مجاهد له پخوا د زیرکتیا په ګاڼه پسوللی وي.

کله چې مجاهد په خپله باغچه کې کار پیلوي، خپل ګاونډیویني چې ځارنه

[1] - التوبة:۳۹



یې کوي، د هغه په زړه کې سودا او اندېښنه وي، چې په څه ډول خپل ګاونډي ته د کار د کرلو د فکر د رامنځ ته کولو، او په بریالیتوب د خړوبولو لارښوونه وکړي.

که چېرته مجاهد دا ډول نصیحتونه واوري، پایله به دا شي چې هغه به د نورو خلکو کارونه پیل کړي او هغه باغچه به په رښتیني توګه د ګاونډي د مفکورې یوه مجسمه وګرځي، چې دا په کې کار کوي.

ځکه خو مجاهد باید وپوهېږي هغه لېونی دی چې د نورو په باغچه کې مصروف وي، د خپل باغ په اړه فکر نه کوي، له همدې امله مجاهد هیله لري، چې د خپلې باغچې باغواني په خپله د خپل ځان لپاره وکړي.[1]

[1] -په دې درې فقرو کې دا توصیه شوې چې یو مجاهد په خپله زیرکتیا ولري، نه دا سې چې له نورو لارښوونې تر لاسه او عمل پرې کوي، په یوه باغچه کې کار کول ښېلګه ده چې له ژوند سره تشبیه شوې ده، مثلاً که یو بزګر په خپله کرونده کې کار پیل کړي خو هدایات له بل چا تر لاسه کوي نو د دې پر ځای چې دغه بزګر له خپل فکر او زړه سره سم څه رامنځ ته کړي پایله به دا شي چې کرونده به یې د یو بل چا د افکارو ترجماني کوي، همدا راز مجاهد هم دی چې باید مستقل او زیرک وي ، هیڅکله هم د نورو د عقل پر اساس پرېکړې او کارونه تر سره نه کړي، که نه نو د ژوند پاغچه به یې د نورو خلکو د افکارو ځرګندونه کوي، نه د مجاهد د شخصیت. د حماقت تر عنوان لاندې راوړل شوی ایت شریف هم د همدې لارښوونه کوي چې یو انسان باید خپل ژوند د الله له احکامو سره سم برابر کړي.(ژباړن)

# خيانت

الله تعالی(ﷻ) فرمايي:

﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَتَّخِذُوا عَدُوِّي وَعَدُوَّكُمْ أَوْلِيَاءَ تُلْقُونَ إِلَيْهِمْ بِالْمَوَدَّةِ وَقَدْ كَفَرُوا بِمَا جَاءَكُمْ مِنَ الْحَقِّ يُخْرِجُونَ الرَّسُولَ وَإِيَّاكُمْ أَنْ تُؤْمِنُوا بِاللَّهِ رَبِّكُمْ إِنْ كُنْتُمْ خَرَجْتُمْ جِهَادًا فِي سَبِيلِي وَابْتِغَاءَ مَرْضَاتِي تُسِرُّونَ إِلَيْهِمْ بِالْمَوَدَّةِ وَأَنَا أَعْلَمُ بِمَا أَخْفَيْتُمْ وَمَا أَعْلَنْتُمْ وَمَنْ يَفْعَلْهُ مِنْكُمْ فَقَدْ ضَلَّ سَوَاءَ السَّبِيلِ﴾.[1]

ژباړه: (ای مؤمنانو ! ستاسې او زما له دښمن سره دوستي مه کوئ، تاسې هغوی ته دوستانه پيغامونه استوئ، حال دا چې هغوی په هغه څه کافران شوي چې تاسې، ته په حقه راغلي دي، د الله رسول او تاسې له دې کبله وباسي چې تاسې په خپل رب الله ايمان راوړی (دوستي ورسره مه کوئ)، که چېرته تاسې زما په لار کې د جهاد په نيت او زما د رضا د تر لاسه کولو لپاره راوتلي ياستئ، تاسې په پټه هغوی ته دوستي استوئ، خو زه په هغه څه چې تاسې يې پټوئ او يا يې ښکاره کوئ ښه خبر يم او څوک چې دا کار وکړي نو هغه له سمې لارې بې لارې شوی دی).

يو تن بايد د جگړې ډگر ته په خلاصو سترگو داخل شي، بايد خپل رښتوني ملگري په خنگ کې وساتي، ځکه کله کله له مجاهد سره اوږه په اوږه جنگېدونکی ملگری دښمن شي، دا هغه حالت وي چې تر بل هر څه زيات د کينې او حسد احساس زېږوي، خو مجاهد پوهېږي هغه جنگيالی، چې کينې او حسد ړوند کړی وي، په جگړه کې د ماتې او فنا سره مخ کېدونکی دی.

مجاهد بايد د خپل نني دښمن هغه نېکۍ را يادې کړي، چې د دوستۍ پر مهال يې کړې دي، بايد کوښښ وکړي وپوهېږي چې په دوست کې يې ولې ناڅاپي

1 - الممتحنة:۱



بدلون رامنځ ته شو او هغه کوم روحي ټپونه وو چې راټول شول، ځواکمن شول، يو بل يې مضبوط کړل، څو دا ډول بدلون رامنځ ته کړي.

کوښښ کوي درک کړي، چې ولې هرڅوک دښمن او خاين شو؟ ځينې اوس او ځينې لږ مخکې، د همدې نويو خاينانو له منځه د سفر هغه ملگري وو چې جگړه يې تنظيموله او د جگړې په چاپېريال کې به موجود وه.

او ځينې نور بيا ملگري، زړور او هېوادپاله وو، خو د هر يو ايمان کمزوری و، دا هغه خلک دي، چې له دښمن سره د جگړې پر مهال په خپل شخصي ځواک تکيه کوي، خو د انسان ځواک محدود دی، مجاهد پوهېږي چې ايمان کمزوری کېږي، مگر هغه مهال چې د ايمان څښتن يې مضبوط نه کړي.

الله تعالی(ﷻ) فرمايي:

﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَخُونُوا اللَّهَ وَالرَّسُولَ وَتَخُونُوا أَمَانَاتِكُمْ وَأَنْتُمْ تَعْلَمُونَ﴾[1]

ژباړه: (ای مؤمنانو ! له الله او د هغه له رسول سره خيانت مه کوئ او مه په خپلو امانتونو کې خيانت کوئ، سره له دې چې پوهېږئ).

هېڅ يو انسان د کمال صفت نه لري، لکه څرنگه چې هېڅ يو انسان مطلق احمق هم نه وي، په دې اړه مجاهد هغه مهال فکر کوي، کله چې يو نوی دښمن کشف کړي.

يو مجاهد په خپله له خيانته ځان ژغوري، خو د نورو د خيانت اسباب لټوي او په سمدستي توگه په هغوی پرېکړه نه کوي.

1 - الانفال:۲۷

# هدف

مجاهد پوهېږي چې هدف وسيلې ته اجازه نه ورکوي، ژوند يې د يو ناڅرګند څخه د يو بل مبهم او ورک موجود د لټون په لور راهنمايي کوي، د مجاهد د ژوند هره لمحه په همدې لمبې وهونکي راز کې رانغښتې ده چې: له کومه راغلی او چېرته به ځي؟

خو هغه دنيا ته يوازې د خپل راتګ سبب پېژني، په داسې حال کې چې د هغه روح خوشحاله وي، په ناڅاپي توګه يې نوي احساسات زنداني کوي، او د نويو افکارو خوا ته ميلان مومي.

اراده د کار د پيل فکر دی، هر کله چې مجاهد په ټوله معنا خپل افکار هدف ته د رسېدو په لور متوجه کړي، په خپله لار کې به له هر څه بې خبره شي او که چېرته خپل ټول پام په يوه مسئله متمرکز کړي، نو نورو مسئلو ته به ځوابونه و نه مومي، ولو که هغه ته ډېر نژدې وي.

الله تعالی(ﷻ) په قرآنکريم کې فرمايي:

﴿وَالَّذِينَ جَاهَدُوا فِينَا لَنَهْدِيَنَّهُمْ سُبُلَنَا وَإِنَّ اللَّهَ لَمَعَ الْمُحْسِنِينَ﴾ [1]

ژباړه: (او هغه کسان چې زمونږ په دين کې کوښښ کوي، وبه ښيو دوی ته لارې خپلې او بې شکه الله(ﷻ) د نېکو کارانو ملګری دی).

او دا هغه څه دي چې مجاهد اړباسي، څو خپل ځان او خپل کار الله تعالی ته وسپاري.

[1] - العنکبوت:٦٩



# غوسه

الله تعالی(ﷻ) په خپل عظيم کتاب کې فرمايي:

﴿الَّذِينَ يُنْفِقُونَ فِي السَّرَّاءِ وَالضَّرَّاءِ وَالْكَاظِمِينَ الْغَيْظَ وَالْعَافِينَ عَنِ النَّاسِ وَاللَّهُ يُحِبُّ الْمُحْسِنِينَ﴾ [1]

ژباړه: (هغه کسان چې د الله(ﷻ) په لار کې په خوښۍ سره په ارزانۍ او تکليف (تنګسه) کې مالونه نفقه کوي، خپلې غوسې زغمي، خلکو ته بښنه کوي، بې شکه الله(ﷻ) نيکي کوونکي خوښوي).

رسول کريم (صل الله عليه وسلم) فرمايلي دي:

﴿عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَيْسَ الشَّدِيدُ بِالصُّرَعَةِ إِنَّمَا الشَّدِيدُ الَّذِي يَمْلِكُ نَفْسَهُ عِنْدَ الْغَضَبِ﴾ [2]

ژباړه: ( ابو هريره(رضي الله عنه) وايي رسول الله(صل الله عليه وسلم)فرمايلي: ځواکمن هغه څوک نه دی چې په جګړه (پهلوانۍ) کې برلاسی شي، بلکې ځواکمن هغه څوک دی، چې د غوسې پر مهال په خپل ځان واک راولي).

مجاهد په پرله پسې اغېز باور لري، ځکه ډېر کرته ويني يو څوک د هغه چا په وړاندې ور تعامل نه شي کولای، چې په ښه توګه د ځواب ويلو وړتيا يا جرات نه لري.

همدا راز هر کله چې يو څوک په خپلو کارونو کې بې زړه شي، يا وشرمېږي، په هغه د يو کمزوري شخص ګومان کېږي، خو په مقابل کې دغه تن په خپله دې ډول وضعې ته خاکساري وايي، دا هماغه نقطه ده چې بدمرغي د هر کور په

[1] - ال عمران:١٣٤

[2] - صحيح البخاري

درشل دریږي او همدغه پرله پسې راتلونکی اغېز دی، چې د یو چا د تعامل مقصد یو څه وي خو نور خلک یې بل ډول انګېري.
هر انسان دا وړتیا نه لري، چې د خپلو کارونو پایلې ووینې له همدې امله مجاهد د خپلې وسلې د استعمال د پیل پر مهال له زیات احتیاطه کار اخلي، د غوسې پر مهال وسله نه کاروي او که چېرته ډېره زیاته غوسه ورشي، نو یوه ډبره په سوک وهي او خپل ځان ژوبلوي، د هغه د لاس دغه ټپ به ډېر ژر جوړ شي، خو د هغه د اولادونو هغه زخم به د ژوند تر پایه پاتې شي، چې په جګړه کې یې د پلار د ماتې له کبله لیدلی.[1]

[1] -د غوسې تر عنوان لاندې ذکر شوی مبارک ایت او حدیث له عنوان سره سمون خوري او ثرګندوي چې یو مجاهد باید غوسه ناک نه وي او په خپل ځان واک ولري خو وروستۍ درې فقرې کېدای شي د یو شمیر لوستونکو لپاره ډېرې مبهمې او ګونګې وي، ځکه چې لیکوال خورا منطقي او ژورې خبرې کړي، لیکوال دا پیغام ورکوي چې یو مجاهد باید بې زړه ، ډارن او کم جرآته نه وي ځکه چې کېدای شي یو مجاهد په وخت ځواب ویلو ته تواضع ووایي خو خلک به پرې د کمزوري شخص ګومان وکړي.
په ورته وخت کې باید له غوسې څخه هم کار وانه اخلي، له دې کبله چې هیڅوک هم د خپلو کارونو په پایلو نه پوهیږي ځکه خو مجاهد باید خپله وسله د غوسې په حالت کې هم استعمال نه کړي او نه په قهر کې پرېکړې وکړي چې د ناوړه پایلو سره به مخ شي.
لیکوال د لا وضاحت لپاره اشارتاً یوه تشبیه او بېلګه وړاندې کوي، که یو څوک په زیاته غوسه کې یوه غټه ډبره په سوک ووهي او لاس یې ټپي شي نو دغه ټپ ژر جوړیږي، خو د یو مجاهد په توګه که څوک وسله په زیاته غوسه کې وکاروي او له ماتې سره مخ شي نو دغه ماتې به یې د اولادونو پر بدن د یو ټپ په څېر د ژوند تر پایه پورې پاتې شي.(ژباړن)



# مساوات

الله تعالی(جل جلاله) فرمایي:
﴿لَا يَسْتَوِي الْقَاعِدُونَ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ غَيْرُ أُولِي الضَّرَرِ وَالْمُجَاهِدُونَ فِي سَبِيلِ اللَّهِ بِأَمْوَالِهِمْ وَأَنْفُسِهِمْ فَضَّلَ اللَّهُ الْمُجَاهِدِينَ بِأَمْوَالِهِمْ وَأَنْفُسِهِمْ عَلَى الْقَاعِدِينَ دَرَجَةً وَكُلًّا وَعَدَ اللَّهُ الْحُسْنَى وَفَضَّلَ اللَّهُ الْمُجَاهِدِينَ عَلَى الْقَاعِدِينَ أَجْرًا عَظِيمًا﴾.[1]
ژباړه: (د الله په نېز د مؤمنانو له منځه له جهاده کېناستونکي او د الله جل و علا په لار کې په خپلو مالونو او ځانونو جهاد کوونکي نه دي برابر، مګر هغه ناست کسان چې عذر لري، الله(جل جلاله) په خپلو مالونو او ځانونو باندې جهاد کوونکو ته په ناستو کسانو په درجو سره فضیلت او برتري ورکړې ده، الله(جل جلاله) له ټولو سره د ښې جزا یعنې جنت ژمنه کړې او الله(جل جلاله) مجاهدینو ته په ناستو کسانو باندې د ستر اجر په ورکولو سره غوره والی ورکړی دی).
الله تعالی(جل جلاله) د قرآن عظیم الشان په یو بل ځای کې فرمایي:
﴿أَجَعَلْتُمْ سِقَايَةَ الْحَاجِّ وَعِمَارَةَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ كَمَنْ آمَنَ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ وَجَاهَدَ فِي سَبِيلِ اللَّهِ لَا يَسْتَوُونَ عِنْدَ اللَّهِ وَاللَّهُ لَا يَهْدِي الْقَوْمَ الظَّالِمِينَ، الَّذِينَ آمَنُوا وَهَاجَرُوا وَجَاهَدُوا فِي سَبِيلِ اللَّهِ بِأَمْوَالِهِمْ وَأَنْفُسِهِمْ أَعْظَمُ دَرَجَةً عِنْدَ اللَّهِ وَأُولَئِكَ هُمُ الْفَائِزُونَ يُبَشِّرُهُمْ رَبُّهُمْ بِرَحْمَةٍ مِنْهُ وَرِضْوَانٍ وَجَنَّاتٍ لَهُمْ فِيهَا نَعِيمٌ مُقِيمٌ خَالِدِينَ فِيهَا أَبَدًا إِنَّ اللَّهَ عِنْدَهُ أَجْرٌ عَظِيمٌ﴾[2]
ژباړه: (ایا ګڼلي دي تاسې اوبه ورکول حاجیانو ته او ودانول د مسجد حرام په څېر د ایمان د هغه چا چې په الله(جل جلاله) او د اخرت په ورځې ایمان لري او جهاد یې

[1] - النساء: ۹۵
[2] - التوبة: ۱۹-۲۲

کړی وي په لار د الله(ﷻ)کې. نه دي برابر دوی په نزد د الله(ﷻ)، او الله(ﷻ) ظالم قوم ته سمه لار نه ښيي. هغه کسان چې ايمان يې راوړی، هجرت يې کړی او د الله تعالی(ﷻ) په لار کې يې په مالونو او ځانونو جهاد کړی، د الله(ﷻ) په نېز د درجو له پلوه ډېر لوی دي او هم دوی کاميابي موندونکي دي. زېری ورکوي دوی ته رب د دوی، له خپله اړخه د رحمت، خپلې رضا او جنتونو د ورکولو چې وي دوی ته په دې جنتونو کې همېشني نعمتونه، دوی به په دې جنتونو کې د تل لپاره وي، بې شکه خاص الله(ﷻ) سره ستر اجر او ثواب دی).

سره له دې چې حضرت عمر(رضی الله عنه) د سعد(رضی الله عنه) په اخلاص، ايمان او وړتيا پوره باور درلود، کله يې چې هغه ته قيادت وسپارلو نو ورته يې د يو په زړه پورې نصيحت په ترڅ کې بشپړ منهج وړاندې کړ، چې په کې راغلي:

"ای سعده! تا دې دا خبره غره نه کړي، چې خلک ووايي د رسول الله ماما او ملګری دی، الله تعالی(ﷻ) بدی په بدی له منځه وړي، خو بدی په نېکی نه محوه کوي، د الله تعالی(ﷻ) او د بندګانو تر منځ نسب هېڅ ځای نه لري، بلکې طاعت او فرمانبرداري ده، د الله(ﷻ) په وړاندې ټول خلک که شريفان دي او که پست برابر دي، الله(ﷻ) يې رب دی او هغوی يې بندګان دي، الله تعالی(ﷻ) خپل فرمانبرداره بندګان خوښوي، هر هغه کار غوره کوه چې رسول الله به غوره کولو".

رسول الله(صل الله عليه وسلم) فرمايلي دي:

**﴿عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ، قَالَ مَنْ آمَنَ بِاللَّهِ وَرَسُولِهِ وَأَقَامَ الصَّلَاةَ وَصَامَ رَمَضَانَ ، كَانَ حَقًّا عَلَى اللَّهِ أَنْ يُدْخِلَهُ الْجَنَّةَ هَاجَرَ فِي سَبِيلِ اللَّهِ ، أَوْ جَلَسَ فِي أَرْضِهِ الَّتِي وُلِدَ فِيهَا ، قَالُوا: يَا رَسُولَ اللَّهِ ، أَفَلَا نُنَبِّئُ النَّاسَ بِذَلِكَ ؟ ، قَالَ إِنَّ فِي الْجَنَّةِ مِائَةَ دَرَجَةٍ أَعَدَّهَا اللَّهُ لِلْمُجَاهِدِينَ فِي سَبِيلِهِ ، كُلُّ دَرَجَتَيْنِ مَا بَيْنَهُمَا كَمَا**



**بَيْنَ السَّمَاءِ وَالْأَرْضِ فَإِذَا سَأَلْتُمُ اللَّهَ، فَسَلُوهُ الْفِرْدَوْسَ فَإِنَّهُ أَوْسَطُ الْجَنَّةِ وَأَعْلَى الْجَنَّةِ وَفَوْقَهُ عَرْشُ الرَّحْمَنِ وَمِنْهُ تَفَجَّرُ أَنْهَارُ الْجَنَّةِ﴾**[1]

ژباړه: (ابو هريرة(رضی الله عنه) فرمايي رسول الله(صل الله عليه وسلم) فرمايلي دي: څوک چې په الله(ﷻ) ايمان راوړي، لمونځ اداء کړي او روژه ونيسي، الله تعالی(ﷻ) يې جنت ته داخلوي، که هجرت يې کړی وي او که په هغه ځمکه کې پاتې شوی وي چې په کې زېږېدلی دی.

صحابه کرامو وفرمايل: ای د خدای رسوله(صل الله عليه وسلم)! ايا خلکو ته د دې خبرې خبر ورنه کړو؟

بيا رسول الله(صل الله عليه وسلم)وفرمايل: په جنت کې سل درجې دي چې الله تعالی(ﷻ) د خپلې لارې مجاهدينو ته چمتو کړي دي، د هرې درجې تر منځ دومره فاصله ده لکه د ځمکې او اسمان تر منځ، نو کله چې له الله تعالی(ﷻ) څخه سوال کوئ، د جنت الفردوس سوال وکړئ ځکه چې دا د جنت په منځ کې دی او د جنت تر ټولو لوړه درجه ده، د دې د پاسه د الله(ﷻ) عرش دی او له همدې څخه د جنت ويالې رابهېږي).

مجاهد له خپلو مسلمانانو ورونو سره مينه کوي او هغوی ته په خپل ځان برتري ورکوي.

---

[1] -صحيح البخاري

# موافقه

الله تعالی(ﷻ) فرمایلي:

﴿فَبِمَا رَحْمَةٍ مِنَ اللَّهِ لِنْتَ لَهُمْ وَلَوْ كُنْتَ فَظًّا غَلِيظَ الْقَلْبِ لَانْفَضُّوا مِنْ حَوْلِكَ فَاعْفُ عَنْهُمْ وَاسْتَغْفِرْ لَهُمْ وَشَاوِرْهُمْ فِي الْأَمْرِ فَإِذَا عَزَمْتَ فَتَوَكَّلْ عَلَى اللَّهِ إِنَّ اللَّهَ يُحِبُّ الْمُتَوَكِّلِينَ﴾[1]

ژباړه: (نو یوازې په سبب د رحمت د الله پر تا ای محمده ! نرمي کوې ته له دوی سره او که چېرته ته بد خویه او سخت زړی وی، نو خامخا به دوی (صحابه) ستا له شا او خوا تار په تار شوي وو، نو دوی ته عفوه وکړه او له الله(ﷻ) ورته بښنه غواړه او په کارونو کې ورسره مشوره وکړه او کله دې چې یو کار ته کلکه اراده وکړه په الله(ﷻ) توکل کوه، بې شکه الله(ﷻ) توکل کوونکي خوښوي).

مجاهد هېڅکله نه شي کولای له خپلو نورو مجاهدینو ورونو سره له همغږۍ، نظم او برابرۍ پرته جګړې ته داخل شي، همدا راز د هغه لپاره ناشوني ده چې له دښمن سره د مخامخ کېدو په هکله له ښخوا د نیت، فکر، سوچ، سنجش او مشورې پرته له دښمن سره مخامخ شي.

الله(ﷻ) فرمایي:

﴿وَأَطِيعُوا اللَّهَ وَرَسُولَهُ وَلَا تَنَازَعُوا فَتَفْشَلُوا وَتَذْهَبَ رِيحُكُمْ وَاصْبِرُوا إِنَّ اللَّهَ مَعَ الصَّابِرِينَ﴾[2]

ژباړه: (د الله(ﷻ) او د هغه د رسول(صل الله علیه وسلم) حکم ومنئ، د جهاد د کارونو په اړه په خپلو منځو کې جګړې مه کوئ، ځکه چې په دې سره به تاسې

1 - ال عمران:۱۵۹
2 - الانفال:٤٦



بې زړه شئ، باد به مو لاړ شي قوت به مو ختم شي، صبر کوئ بې شکه الله(ﷻ) له صابرانو سره دی).

رسول کریم(صل الله علیه وسلم) فرمایي دي:

﴿عَنْ أَبِي أُمَامَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَا زَعِيمٌ بِبَيْتٍ فِي رَبَضِ الْجَنَّةِ لِمَنْ تَرَكَ الْمِرَاءَ وَإِنْ كَانَ مُحِقًّا ، وَبِبَيْتٍ فِي وَسَطِ الْجَنَّةِ لِمَنْ تَرَكَ الْكَذِبَ وَإِنْ كَانَ مَازِحًا وَبِبَيْتٍ فِي أَعْلَى الْجَنَّةِ لِمَنْ حَسَّنَ خُلُقَهُ﴾[1]

ژباړه: (ابو امامة(رضی الله عنه) فرمایي رسول الله(صل الله علیه وسلم)فرمایلي دي: زه د جنت په لاندې طبقه کې د هغه چا لپاره د یو کور ضامن یم، چې جګړه پرېږدي ولو که په حقه وي او د جنت په منځ کې د یو کور ضامن یم چې دروغ پرېږدي ولو که ټوکه کوي او د جنت په پورته طبقه کې د یو کور ضامن یم چې خپل خلق "رویه" ښه کړي ).

دغه ګرد ایتونه او مبارک حدیثونه د خپل مشر د امر پر منلو او موافقې لارښوونه کوي او امر کوي چې باید د جهاد په لار کې اختلافات او جګړې رامنځ ته نه شي، چې د یو مجاهد لپاره خورا دردوونکي او زیان رسوونکي دي.

1 - سنن ابو داؤد

# شهید

مرګ هغه حقیقت دی چې خلاصی ترې نه شته، له همدې امله الله تعالی(ﷻ) د مرګ په اهمیت تاکید کړی او په قرآنکریم کې یې درې ځله فرمایلي چې (كُلُّ نَفْسٍ ذَائِقَةُ الْمَوْتِ)[1] هر انسان خامخا مړ کېدونکی دی، ولو که هیلو او امیدونو تیر ایستلی او غولولی وي.

الله(ﷻ) فرمایي:

﴿كُلُّ نَفْسٍ ذَائِقَةُ الْمَوْتِ وَإِنَّمَا تُوَفَّوْنَ أُجُورَكُمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ فَمَنْ زُحْزِحَ عَنِ النَّارِ وَأُدْخِلَ الْجَنَّةَ فَقَدْ فَازَ وَمَا الْحَيَاةُ الدُّنْيَا إِلَّا مَتَاعُ الْغُرُورِ﴾[2]

ژباړه: (هر نفس د مرګ څکونکی دی، بې شکه تاسې ته به د قیامت په ورځ خپل اجرونه پوره درکړل شي، نوهغه څوک بریالی شو چې د دوزخ له اوره لرې او جنت ته داخل کړای شو او نه دی ژوند د دنیا مګر کم او د غولېدو پانګه).

رسول کریم (صل الله علیه وسلم) فرمایلي دي:

﴿عَنِ أَنَسَ بْنَ مَالِك رَضِيَ اللَّهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَا أَحَدٌ يَدْخُلُ الْجَنَّةَ يُحِبُّ أَنْ يَرْجِعَ إِلَى الدُّنْيَا وَلَهُ مَا عَلَى الْأَرْضِ مِنْ شَيْءٍ إِلَّا الشَّهِيدُ

1 -آل عمران_۱۸۵.الانبیاء_۳۵.العنکبوت_۱۸۸

2 - ال عمران:۱۸۵



يَتَمَنَّى أَنْ يَرْجِعَ إِلَى الدُّنْيَا فَيُقْتَلَ عَشْرَ مَرَّات لِمَا يَرَى مِنَ الْكَرَامَةِ﴾[1]

ژباړه: (له انس بن مالک(رضی الله عنه) څخه روایت دی رسول الله(صل الله علیه وسلم) فرمایلي دي: داسې هېڅوک هم نه شته چې جنت ته ننوځي او بیا غواړي چې دنیا ته راوګرځي، او په ځمکه د هغه څه شې پاتې وي، مګر شهید به ارزو لري چې دنیا ته راشي، او بیا لس ځله ووژل شي، ځکه چې هغه په دې مرګ کې کرامت او عزتویني).

په یو مجاهد کې د یو شریف او اصیل سړي ګرد خویونه موندلای شو، چې هغه زړورتوب، سخا، وفاء، ژمنتوب، ورکړه او سربښیندنه ده.

مجاهد د حضرت خبیب(رضی الله عنه) د اتلوال شهادت په اړه د حضرت سعید بن عامر الجمحي(رضی الله عنه) روایت یاد ساتي چې ویلي دي:

د ښځو او کوچنیانو د شور او ځوګ په منځ کې، سعید د خبیب ثابت او ارام اواز اورېده چې ویل یې "له مرګه مخکې د دوه رکعته لمونځ اجازه غواړم".

سعید حضرت خبیب ځارلو چې په څه ډول یې قبلې شریفې ته مخ کړ او په پوره خشوع سره یې دوه رکعته لمونځ اداء کړ، بیا سعید ولیدل چې څه ډول خبیب د قریشو مشرانو ته مخ کړ او ویې ویل:

په خدای(ﷻ) قسم که چېرته ما سره دا وېره نه وه، چې تاسې به وایئ له مرګه وېرېده، نو زما لمونځ به له دې هم اوږد و.

سعید ولیدل چې قوم یې په څه ډول خبیب راکشولو، د هغه غوښې یې پرې کولې او چیغې یې ورته وهلې: ایا خوښه دې ده چې (محمد ) ستا په ځای دلته وای؟ ایا خوښه دې نه ده چې وژغورل شې؟

له حضرت خبیبه وینې بهېدلې او ویل به یې:

په خدای(ﷻ) قسم نه خوښوم چې له خپلې کورنۍ سره یم، روغ رمټ او په امن

1 -صحیح البخاري

کې یم او رسول الله په داسې حال کې پرېږدم چې هغه ته ستاسې په منځ کې د یو اغزي په اندازه تکلیف هم ورسیږي.

خلکو لاسونه پورته کول هغه یې ګوابنلو او ویل به یې : ویې وژنئ، ویې وژنئ !

سعید بن عامر ولیدل، چې حضرت خبیب اسمان ته سترګې پورته کړې او ویې ویل: ای خدایه(ﷻ) یو یو یې کړه، خواره واره یې ووژنه او یو هم ترې مه پرېږده.

له دې وروسته حضرت خبیب خپلې وروستۍ ساه ګانې وایستلې، په داسې حال کې چې پر بدن یې د تورو او نېزو له ټپونو وینې روانې وې.

حضرت محمد (صل الله علیه وسلم) فرمایلي دي:

﴿عَنْ سَهْلَ بْنَ أَبِي أُمَامَةَ بْنِ سَهْلِ بْنِ حُنَيْفٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ سَأَلَ اللَّهَ الشَّهَادَةَ بِصِدْقٍ بَلَّغَهُ اللَّهُ مَنَازِلَ الشُّهَدَاءِ وَإِنْ مَاتَ عَلَى فِرَاشِهِ﴾[1]

ژباړه: (سهل بن ابي امامه بن سهل بن حنیف له خپل پلار او هغه له خپل نیکه څخه روایت کړی چې رسول الله(صل الله علیه وسلم) فرمایلي: هغه څوک چې په صدق سره له الله(ﷻ) څخه د شهادت سوال وکړي، الله تعالی(ﷻ) به یې د شهیدانو درجو ته ورسوي، ولو که په خپله بستره کې مړ شوی وي).

د یرموک په جګړه کې حضرت عکرمة(رضی الله عنه) پر دښمن داسې ورپرېوت، لکه د ګرمې ورځې تږی چې په اوبو ورپرېوځي، کله چې یو مهال پر مسلمانو جګړه سخته شوه، له خپل اسه ښکته شو، د خپلې تورې تېکی یې مات کړ او د رومیانو په صفونو کې ورننوت، حضرت خالد بن الولید(رضی الله عنه) ورورړاندې شو او ویې ویل: پام کوه عکرمه، ستا شهادت به په مسلمانانو سخت تمام شي.

[1] - صحیح مسلم



عکرمة ځواب ورکړ:

ما پرېږده خالده ! ته له پخوا راهیسې له رسول الله(صل الله علیه وسلم)سره وې، خو زه او پلار مې د رسول الله(صل الله علیه وسلم) تر ټولو سخت دښمنان وو، ما پرېږده چې د خپلو تېرو ګناهونو کفاره وکړم.

تا په مناسب وخت کې ایمان راوړ، د رسول الله(صل الله علیه وسلم) تر څنګ دې جګړې وکړې او د هغه مرسته دې کړې، خو ما په ډېرو ځایونو کې د رسول الله(صل الله علیه وسلم)پر ضد جګړې کړي، نن به له رومیانو تښتم؟ ! هېڅکله نه شي کېدای، بیا یې د مسلمانانو په منځ کې چیغه کړه:

څوک په مرګ بیعت کوي؟

له هغه سره یې د اکا حارث بن هشام[1] او ضرار بن الازور[2] په ګډون څلور سوه تنو مسلمانانو بیعت وکړ، هغوی د خالد بن ولید د کېږدۍ په شا او خوا کې خورا سخته جګړه وکړه، د خالد تر مشرۍ لاندې یې په کلکه دفاع وکړه او په پای کې شهید شو.

پاک نبي(صل الله علیه وسلم) فرمایلي دي:

﴿عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ يُغْفَرُ لِلشَّهِيدِ كُلُّ ذَنْبٍ إِلَّا الدَّيْنَ﴾[3]

[1] - حارث بن هشام بن المغیرة بن عبد الله، د ابو جهل ورور او د عکرمة اکا کېده، د مکې د فتحې په کال مسلمان شوی او د هجرت په پنځلسم کال د حضرت عمر د خلافت پر مهال د یرموک په غزا کې په شهادت رسېدلی.

[2] -ضرار بن الازور الاسدي، د مکې له فتحې وروسته په اسلام مشرف شوی، د خالد بن الولید او ابو عبیدة بن الجراح تر مشرۍ لاندې یې د شام په فتحو کې ګډون وکړ او د حضرت عمر د خلافت پر مهال په کال اتلسم هجري کې د وبا په مرض وفات شو، په اردن کې خاورو ته سپارل شوی دی.

[3] - صحیح مسلم

ژباړه: (له عبد الله بن عمرو بن العاص(رضی الله عنه) څخه روایت دی چې رسول الله(صل الله علیه وسلم)فرمایلي دي: له قرض پرته شهید ته نورې ټولې ګناوې ببښل کیږي).
کله چې له یو ځایه د تبدیلۍ اوامر صادر شي، مجاهد ټول هغه کسان له نظره تېروي چې په سفر کې یې ورسره ملګرتیا شوې وي، که څه هم زړه یې له غمه ډک وي، خو مجاهد پوهېږي چې وسله یې سپېڅلې ده او باید د خپل هغه رب امر ته لبیک ووایي چې د هغه له امله جنګیږي، له خپلو ملګرو جلا کیږي او ځي.
مجاهد له خپلو مجاهدینو ورونو مننه کوي ، یوه ژوره ساه واخلي، پر مخ ځي او د خپلو ملګرو په ملتیا د تېر سفر د ښو خاطرو یو نه هېریدونکی انځور له ځانه سره وړي.



# دعاء

الله تعالی(ﷻ) فرمایي:
﴿فَلَمَّا فَصَلَ طَالُوتُ بِالْجُنُودِ قَالَ إِنَّ اللَّهَ مُبْتَلِيكُمْ بِنَهَرٍ فَمَنْ شَرِبَ مِنْهُ فَلَيْسَ مِنِّي وَمَنْ لَمْ يَطْعَمْهُ فَإِنَّهُ مِنِّي إِلَّا مَنِ اغْتَرَفَ غُرْفَةً بِيَدِهِ فَشَرِبُوا مِنْهُ إِلَّا قَلِيلًا مِنْهُمْ فَلَمَّا جَاوَزَهُ هُوَ وَالَّذِينَ آمَنُوا مَعَهُ قَالُوا لَا طَاقَةَ لَنَا الْيَوْمَ بِجَالُوتَ وَجُنُودِهِ قَالَ الَّذِينَ يَظُنُّونَ أَنَّهُمْ مُلَاقُو اللَّهِ كَمْ مِنْ فِئَةٍ قَلِيلَةٍ غَلَبَتْ فِئَةً كَثِيرَةً بِإِذْنِ اللَّهِ وَاللَّهُ مَعَ الصَّابِرِينَ﴾[1]
ژباړه (نو کله چې طالوت له لښکرو سره راووت، وییې ویل چې الله(ﷻ) په یوه ویاله سره ستاسې ازمویونکی دی، هر هغه څوک چې له هغې ویالې اوبه وڅښي، زما له پیروانو نه دی او څوک چې یې ونه څښي نو بې شکه هغه زما له تابعانو څخه دی، مګر هغه څوک چې یوه لپه اوبه د لاس په ورغوي سره واخلي، ټولو له هغې ویالې څخه اوبه وڅښلې مګر لږو له دوی څخه له یوې لپې زیاتې ونه څښلې، نو کله چې طالوت او ورسره مؤمنان له هغې ویالې تېر شول، هغو کسانو چې مخالفت یې کړی و او اوبه یې څښلې وې وویل چې نن ورځ له جالوت او د هغه د لښکر سره زموږ د جنګ کولو توان نه شته، هغه کسانو چې یقین یې و چې بې شکه دوی الله تعالی(ﷻ) ته ورتلونکي دي، وویل ډېر کرته د مؤمنانو کمه ډله د الله(ﷻ) په حکم سره د کفارو په ډېرې غټې ډلې غلبه کړې او الله(ﷻ) له صابرانو سره دی).
رسول الله(صل الله علیه وسلم) فرمایلي دي:
﴿عَن سَهْلُ بْنُ سَعْدٍ أَنّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ ثِنْتَانِ لَا تُرَدَّانِ أَوْ قَلَّ مَا

[1] - البقرة:۲۴۹

تُرَدَّانِ الدُّعَاءُ عِنْدَ النِّدَاءِ، وَعِنْدَ الْبَأْسِ حِينَ يُلْحِمُ بَعْضُهُ بَعْضًا﴾[1]

ژباړه: (سهل بن سعد(رضی الله عنه) وايي رسول الله(صل الله عليه وسلم)فرمايلي: د الله(ﷻ) په وړاندې دوه دعاګاوې نه رد کيږي او يا ډېر کم کرت رد کيږي، يوه د اذان پر مهال دعاء او بله د هغې جګړې په هغه وخت کې دعا، چې ډېره سخته شوې او يو بل په کې وژل شوي وي).

مجاهد تل په خپل لمانځه کې دعا کوي او وايي:

"ای خدايه(ﷻ) ما خپل ځان او خپل کار تاته سپارلی، ماته په خپله قضا او پرېکړه د رضا توفيق راکړه، ستا وېره، مينه او نژدېوالی مې نصيب کړه، د صبر په توګه مې مرسته وکړه او روح مې ثابت کړه، ستا په سمه لار مې قدمونه ټينګ کړه، زما د نفس پر ضد زما مرسته وکړه او د کافر قوم پر وړاندې مې مرستندوی شه، داسې علم را وښيه چې هېڅکله يې هېر نه کړم، ستا په لار کې شهادت راپه برخه کړه، ښښنه راته وکړه او پر ما رحم وکړه".

سپېڅلي نبي(صل الله عليه وسلم) فرمايلي دي:

﴿عَنْ النُّعْمَانِ بْنِ بَشِيرٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ الدُّعَاءَ هُوَ الْعِبَادَةُ ثُمَّ قَرَأَ "وَقَالَ رَبُّكُمُ ادْعُونِي أَسْتَجِبْ لَكُمْ" سورة غافر آية﴾[2]

ژباړه: (نعمان بن بشير(رضی الله عنه) وايي رسول الله(صل الله عليه وسلم)وفرمايل: بې شکه چې دعاء عبادت دی او بيا يې دا ايت شريف ولوست "وَقَالَ رَبُّكُمُ ادْعُونِي أَسْتَجِبْ لَكُمْ").

[1] - سنن الدارمي
[2] - سنن ابن ماجة



# روژه

رسول الله(صل الله عليه وسلم)فرمايي:

﴿عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ كُلُّ عَمَلِ ابْنِ آدَمَ لَهُ إِلَّا الصَّوْمَ فَإِنَّهُ لِي وَأَنَا أَجْزِي بِهِ وَلَخُلُوفُ فَمِ الصَّائِمِ أَطْيَبُ عِنْدَ اللَّهِ مِنْ رِيحِ الْمِسْكِ﴾[1]

ژباړه: (ابو هريرة(رضی الله عنه) له رسول الله(صل الله عليه وسلم)څخه په يو قدسي حديث کې روايت کوي چې هغه (صل الله عليه وسلم)وفرمايل: د بنده هر عمل د هغه د خپل ځان لپاره دی، يوازې روژه نه ده، روژه زما (الله ﷻ) لپاره ده او زه يې ثواب او بدله ورکوم او د روژه دار د خولې بوی الله(ﷻ) ته د مشکو له بويه زيات خوشبويه دی).

مجاهد د فرصت په تر لاسه کولو سره تر هغه وخته روژه نيسي تر څو يې چې روژه جهاد او صحت ته زيان نه رسوي.

رسول الله(صل الله عليه وسلم)فرمايلي دي:

﴿عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ مَنْ صَامَ يَوْمًا فِي سَبِيلِ اللَّهِ بَعَّدَ اللَّهُ وَجْهَهُ عَنِ النَّارِ سَبْعِينَ خَرِيفًا﴾[2]

ژباړه: (ابو سعيد خدري(رضی الله عنه) فرمايي له رسول الله(صل الله عليه وسلم) څخه مې واورېدل چې فرمايل يې: څوک چې د الله(ﷻ) په لار کې يوه ورځ روژه ونيسي، نو الله تعالی(ﷻ) به د هغه مخ د اور "دوزخ" څخه د اويا منو (کاله) په فاصله لرې کړي).

[1] -صحيح ا لبخاري
[2] -صحيح البخاري

عام خلک هېڅکله هم سم او سلیم فکر نه کوي، هغوی تر خپله وسله د خپل بدن روغتیا ښه ساتي او پاملرنه ورته کوي، خو د خپلو روحونو صحت ته پاملرنه نه کوي، غفلت او بې پروايي ترې کوي. خو مجاهد خپل روح او جسم دواړو ته پاملرنه کوي، هغه ژوند ته هم پاملرنه کوي چې اوس يې تېروي او هغه ژوند ته هم چې وروسته راتلونکی دی، په داسې حال کې چې باقي ژوند ته ډېر اهمیت ورکوي.

د حضرت ابو موسی الاشعري[1] له خوا د (مناذر) د محاصرې[2] پر مهال جګړه اوږده شوه او د مسلمانانو شهیدان ډېر شول، کله چې حضرت مهاجر بن زیاد، د ربیع بن زیاد ورور ولیدل چې د مسلمانانو له صفونو شهیدان ډېر وشول، نو د الله تعالی(ﷻ) د رضا لپاره يې د خپل ځان د پلورلو قصد وکړ، په ځان يې (حنوط)[3] پورې کړل او خپل ورور ته يې وروستی وصیت وکړ.

ورور يې، ربیع، ابو موسی الاشعري ته ورغلو او ورته يې وویل:

"مهاجر په داسې حال کې چې روژه دی د سرښندنې پرېکړه کړې، په مسلمانانو د جنګ زور او د روژې شدت دواړه راغلي، چې د هغوی ثبات ته يې زیان رسولی، په دې حالت کې هم هغوی د روژې له ماتولو انکار کړی، هغه څه چې مناسب ګڼې باید تر سره يې کړې".

ابو موسی الاشعري را ولاړ شو او لښکر ته يې چیغه کړه، ای مسلمانانو زه هر

[1] -د ابو موسی الاشعري نوم عبد الله بن قیس بن سلیم دی، په مکه کې مسلمان شو او حبشې ته يې هجرت وکړ، رسول الله د معاذ بن جبل سره یمن ته هم استولی ؤ، د هجرت د څلویښتم کال څخه وروسته وفات شوی دی.

[2] - دغه پېښه د هجرت په اولسم کال رامنځته شوې وه، کله چې د حضرت ابو موسی الاشعري په مشرۍ د اسلام پوځ له پارس سره نژدې د (اهواز ، مناذر او نهرتیري) سیمې محاصره کړې وې.

[3] - حنوط یو ډول خوشبویي ده چې په مړي وهل کیږي.



روژه دار ته قسم ورکوم، چې یا خو دې روژه ماته کړي، یا دې جګړه بس کړي او بیا يې له یو کنډول نه اوبه وڅښلې، څو نور خلک هم د هغه په پیروۍ اوبه وڅښي.

کله چې مهاجر د هغه خبرې واورېدې د اوبو یو غړپ يې وکړ، او ویې ویل:

په خدای(ﷻ) قسم چې ما دا اوبه له تندې نه نه دي څښلي، بلکې د خپل امیر قسم مې پر ځای کړ.

خپله توره يې را وویستله او د دښمن د صفونو څېرل يې پیل کړل، بې له وېرې يې سرې په ځمکه را غورځول او ورمېږونه يې پرې کول، کله چې د دښمن په لښکر کې ښه ورانډې ولاړ، هغوی پرې له هرې خوا راتاوول شول، له مخې او شا څخه يې په تورو ووهلو تر دې چې شهید شو.

# پرهیزګاري

الله تعالی(ﷻ) فرمايي:

﴿ثُمَّ لَتُسْأَلُنَّ يَوْمَئِذٍ عَنِ النَّعِيمِ﴾[1]

ژباړه: (بيا به له تاسې څخه په دغې ورځې (قيامت) کې د دنيا د نعمتونو او هوساينو په اړه پوښتنه وشي).

رسول الله(صل الله عليه وسلم)فرمايلي دي:

﴿عَنِ ابْنِ كَعْبِ بْنِ مَالِكٍ الْأَنْصَارِيِّ عَنْ أَبِيهِ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا ذِئْبَانِ جَائِعَانِ أُرْسِلَا فِي غَنَمٍ بِأَفْسَدَ لَهَا مِنْ حِرْصِ الْمَرْءِ عَلَى الْمَالِ وَالشَّرَفِ لِدِينِهِ﴾[2]

ژباړه: (ابن کعب بن مالک الانصاري له خپل پلار څخه روايت کوي چې رسول الله(صل الله عليه وسلم)فرمايلي دي: دوه وږي لېوان چې په پسونو کې خوشې شي، دومره فساد نه کوي لکه څومره چې د انسان دين د مال "شتمنۍ" او شرف "دنياوي لوړتيا" د حرص له کبله فاسدېږي).

مجاهد د خپل روح سپېڅلتيا او په دې لار کې هر مرستندوی عمل ته بشپړه پاملرنه کوي. مجاهد د خپلو خواهشاتو بنده نه وي، نه د خپلي خېټې او نه د خپل مال بندګي کوي، بلکې د الله تعالی(ﷻ) بنده وي، د هغه ذات چې د مجاهد د خواهشاتو واګې يې په لاس کې دي.

رسول اکرم(صل الله عليه وسلم) فرمايلي دي:

﴿عَنْ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللَّهِ قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ

1 - التکاثر:۸

2 - جامع الترمذي



طَعَامُ الْوَاحِدِ يَكْفِي الِاثْنَيْنِ وَطَعَامُ الِاثْنَيْنِ يَكْفِي الْأَرْبَعَةَ وَطَعَامُ الْأَرْبَعَةِ يَكْفِي الثَّمَانِيَةَ﴾[1]

ژباړه: (جابر بن عبد الله(رضی الله عنه) فرمايي له رسول الله(صل الله عليه وسلم)څخه مې اوريدلي دي چې فرمايل يې: د يو تن خوراک د دوه تنو لپاره بسنه کوي، د دوه تنو د څلورو لپاره او د څلور تنو خوراک د اتو تنو لپاره بس دی).

ځکه خو حضرت ابو درداء(رضی الله عنه) د خپل مېلمه د دې پوښتنې په ځواب کې چې ستاسې شته (مال او متاع) چېرته دي؟ داسې وويل:

"زموږ کور هلته دی، هغې کور ته په مسلسله توګه ټول هغه شته استوو، چې تر لاسه کوو يې، که چېرته موږ په دې کور کې څه پرېښودل، نو تاسې ته به مو استولي و. سربېره پر دې، هغه بل کور ته زموږ د سفر په لار کې خورا ستر ستر خنډونه دي، د بار له نظره سپک سړی په دې سفر کې له درانده غوره دی، نو موږ ښه وګڼله، چې خپل بارونه سپک کړو، شايد موږ ورباندې واوړو".[2]

رسول الله(صل الله عليه وسلم)فرمايلي دي:

{عَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَوْ كَانَتِ الدُّنْيَا تَعْدِلُ عِنْدَ اللَّهِ جَنَاحَ بَعُوضَةٍ مَا سَقَى كَافِرًا مِنْهَا شَرْبَةَ مَاءٍ}.[3]

ژباړه: (سهل بن سعد(رضی الله عنه) فرمايي رسول الله(صل الله عليه وسلم) فرمايلي دي: که چېرته د الله په وړاندې دې دنيا د يو ماشي د وزر په اندازه ارزښت هم درلودای، نو يو کافر ته به يې يو غړپ اوبه هم نه وې ورڅښلې).

1 -صحيح مسلم

2 -دلته اشاره پرهيزګارۍ او له دنياوي مال او متاع راټولولو څخه ځان ساتنې ته ده.

3 - جامع الترمذي

# حیاء

حدیث شریف فرمایي:

﴿عَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ الْحَيَاءَ لا يَأْتِي إِلا بِخَيْرٍ﴾[1]

ژباړه: (عمران بن حصین(رضی الله عنه) فرمایي رسول الله(صل الله علیه وسلم) فرمایلي دي: حیاء یوازې خیر له ځانه سره لري بل څه نه).

مجاهد پوهېږي چې الله تعالی(ﷻ) او د هغه ملائکې یې ویني، ځکه خو د خلکو په پرتله د الله تعالی(ﷻ) او ملایکو په وړاندې زیاته حیاء کوي.

رسول الله(صل الله علیه وسلم)فرمایلي دي:

﴿عَنْ أَبِيْ مَسْعُوْدٍ عُقبَة بن عَمْرٍو الأَنْصَارِيِّ البَدْرِيِّ رضي الله عنه قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صلى الله عليه وسلم إِنَّ مِمَّا أَدرَكَ النَاسُ من كَلَامِ النُّبُوَّةِ الأُولَى إذا لَم تَستَحْيِ فاصْنَعْ مَا شِئتَ﴾[2]

ژباړه: (له ابو مسعود عقبة بن عمرو الانصاري البدري څخه روایت دی چې رسول الله(صل الله علیه وسلم)فرمایلي دي: ځینې له هغو خبرو چې خلکو د پخوانیو نبیانو او شریعتونو څخه موندلي او تر لاسه کړي، دا دي، که چېرته حیا نه کوې نو چې څه دې خوښه وي هغه کوه).

مجاهد پوهېږي چې حیاء زموږ(انسانانو) او حیواناتو تر منځ د توپیر نقطه ده.

1-صحیح البخاري
2-صحیح البخاري



# رښتینولي

الله تعالی(ﷻ) په خپل پاک کتاب کې فرمایي:

﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا اتَّقُوا اللَّهَ وَكُونُوا مَعَ الصَّادِقِينَ﴾[1]

ژباړه: (ای د ایمان څښتنانو، له الله وویرېږئ او د صادقانو ملګري شئ).

رسول الله(صل الله علیه وسلم)فرمایلي دي:

﴿عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قال رسول الله صلى الله عليه وسلم مَنْ أَطَاعَنِي فَقَدْ أَطَاعَ اللَّهَ وَمَنْ عَصَانِي فَقَدْ عَصَى اللَّهَ وَمَنْ يُطِعِ الْأَمِيرَ فَقَدْ أَطَاعَنِي وَمَنْ يَعْصِ الْأَمِيرَ فَقَدْ عَصَانِي وَإِنَّمَا الْإِمَامُ جُنَّةٌ يُقَاتَلُ مِنْ وَرَائِهِ وَيُتَّقَى بِهِ فَإِنْ أَمَرَ بِتَقْوَى اللَّهِ وَعَدَلَ فَإِنَّ لَهُ بِذَلِكَ أَجْرًا وَإِنْ قَالَ بِغَيْرِهِ فَإِنَّ عَلَيْهِ مِنْهُ﴾[2]

ژباړه: (حضرت ابو هریرة(رضی الله عنه) وایي چې حضرت محمد رسول الله وفرمایل: چا چې زما اطاعت وکړ نو د الله تعالی(ﷻ) اطاعت یې وکړ، او چا چې زما نا فرماني وکړه نو د الله تعالی(ﷻ) د نافرمانۍ مرتکب شو، چا چې د خپل امیر اطاعت وکړ، نو زما اطاعت یې وکړ، او هغه چا چې د خپل امیر اطاعت ونه کړ نو هغه زما له اطاعته سرغړونه وکړه، امام(امیر) د سپر(ډال) حیثیت لري چې تر شا یې جګړه کیږي او ځان پرې ساتل کیږي، که چېرته دې امیر له الله تعالی(ﷻ) څخه په وېرې امر وکړاو په عدل یې چال چلند وکړ نو هغه ته به یې په بدل کې اجر ورکړل شي او که چېرته یې له دې پرته بل څه وویل، نو جزاء

1-التوبة:۱۱۹
2-صحیح البخاري

يې د همدې وينا په اندازه په همده باندې ده).
درواغ د انسان ارزښت کموي، خو رښتينولي د انسان د ارزښت لپاره د اوبو او هوا په څېر کار کوي، ځکه خو مجاهد د خپل ارزښت د بقا په خاطر د تل لپاره د الله تعالی(ﷻ)، خلکو او خپل ځان په وړاندې صادق او رښتونی وي.
همدا علت دی کله چې دوهم خليفه حضرت عمر(رضی الله عنه) په مدينه منوره کې د اسلامي خلافت بيت المال ته د مسلمانانو په لاس په خوندي او پوره امانت سره د کسرا د پلازمينې مداين له فتحې وروسته د غنيمتونو له رسېدلو خبر شو، د حضرت سعد بن ابي وقاص(رضی الله عنه) د قاصدانو په امانتدارۍ يې تعجب وکړ، حضرت علي(رضی الله عنه) ورته وفرمايل:
"تا عفت او پاکېزګي غوره کړه، ځکه هغوی هم عفت اختيار کړ او که چېرته تا هوساينه او ارامي غوره کړې وای، دوی به هم همدا ډول کول، ځکه چې خلک د خپلو مشرانو پر لار ځي".



# تواضع

الله تعالی(ﷻ) فرمايي:
**﴿فَلَا تُزَكُّوا أَنْفُسَكُمْ هُوَ أَعْلَمُ بِمَنِ اتَّقَى﴾**[1]
ژباړه: (د ځان صفتونه مه کوئ، الله تعالی(ﷻ) ښه عالم دی په هغه چا چې له الله وېرېږي).
تواضع او بې کبري د مجاهد دوه لازمي نښې دي، مجاهد د الله تعالی(ﷻ) د کلمې د لوړوالي لپاره جنګيږي، نه د دې لپاره چې خپله پر خلکو لوړ شي.
رسول الله(صل الله عليه وسلم)فرمايلي دي:
**﴿عَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ أَنّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَا شَيْءٌ أَثْقَلُ فِي مِيزَانِ الْمُؤْمِنِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ مِنْ خُلُقٍ حَسَنٍ وَ إِنَّ اللَّهَ لَيُبْغِضُ الْفَاحِشَ الْبَذِيءَ﴾**[2]
ژباړه: (ابو درداء(رضی الله عنه) فرمايلي دي چې رسول الله(صل الله عليه وسلم)وفرمايل: د قيامت په ورځ د مؤمن مسلمان د خير په تله کې تر ښه خوی (خلق حسن) بل څه دروند نه شته او الله تعالی(ﷻ) له فاحش او بد ويونکي څخه کرکه کوي).

---
[1] - النجم: ٣٢
[2] - جامع الترمذي

الله(ﷻ) فرمايلي:

﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا أَطِيعُوا اللَّهَ وَأَطِيعُوا الرَّسُولَ وَأُولِي الْأَمْرِ مِنْكُمْ فَإِنْ تَنَازَعْتُمْ فِي شَيْءٍ فَرُدُّوهُ إِلَى اللَّهِ وَالرَّسُولِ إِنْ كُنْتُمْ تُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ ذَلِكَ خَيْرٌ وَأَحْسَنُ تَأْوِيلًا﴾[1]

ژباړه: (ای مؤمنانو ! د الله، د الله د رسول او د حکم د څښتنـ (يعنې حاکمانو مشرانو) حکم ومنئ، که په څه کې مو اختلاف پيدا شو نو الله(ﷻ) ته "يعنې د الله کتاب ته"، او د الله رسول ته "يعنې حديثو ته" يې ورو ګرځوئ، که چېرته په الله(ﷻ) او د قيامت په ورځ ايمان لرئ، دغه کار خېر او د عاقبت له جهته ښه دی).

مجاهد هغه څه نه هېروي، چې د احد په غزا کې د غشي ويشتونکو له خوا د رسول الله(صل الله عليه وسلم) د امر د مخالفت له کبله صحابه کرامو ته ورپېښې شول.

رسول الله(صل الله عليه وسلم)فرمايلي دي:

﴿عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ أَطَاعَنِي فَقَدْ أَطَاعَ اللَّهَ وَ مَنْ يَعْصِنِي فَقَدْ عَصَى اللَّهَ وَ مَنْ يُطِعِ الْأَمِيرَ فَقَدْ أَطَاعَنِي وَ مَنْ يَعْصِ الْأَمِيرَ فَقَدْ عَصَانِي﴾[2]

ژباړه: (ابو هريرة(رضی الله عنه) وېلي چې رسول الله(صل الله عليه وسلم) وفرمايل: چا چې زما فرمانبرداري وکړه نو داسې ده لکه چې د الله(ﷻ) اطاعت

[1] - النساء: ٥٩

[2] - صحيح مسلم



يې وکړ او چا چې زما نافرماني وکړه نو ګوندې د الله(ﷻ) نافرماني يې وکړه، څوک چې د امير (مشر) اطاعت کوي نو هغه داسې مثال لري لکه چې زما فرمانبرداري کوي او څوک چې د خپل امير (مشر) نافرماني کوي نو په حقيقت کې زما نافرماني کوي).

اراده هغه فکر او نظر دی، چې انسان کار ته راهنمايي کوي، مجاهد له الله تعالی(ﷻ) سره يو تړون کړی، چې د دې تړون يوه ماده په دقيقه توګه د خپل مشر د هر ډول لارښوونو او اوامرو پر ځای کول دي، هر کله چې مجاهد له الله(ﷻ) سره د کړي تړون د مادو ماتول پيل کړي، ټول اعمال يې ضايع شي، چې له همدې امله مجاهد هر وخت د خپل ځان په څارنه، کنترول، د خپلې ارادې په ټينګوالي، ډيسپلين او د خپلو ورسپارل شويو کارونو په تر سره کولو مواظبت کوي.

همدا راز امير حق لري چې ټول اوامر يې ومنل شي، تر څو يې چې په ګناه امر نه وي کړی.

# ادب

رسول الله(صل الله عليه وسلم)فرمايلي دي:

**﴿عَنْ أَبِي أُمَامَةَ قَالَ: قال رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ أَوْلَى النَّاسِ بِاللَّهِ مَنْ بَدَأَهُمْ بِالسَّلَامِ﴾**[1]

ژباړه: (ابو امامة(رضی الله عنه) فرمايي رسول الله(صل الله عليه وسلم)فرمايلي دي: الله(ﷻ) ته نژدې او د هغه د رحمت وړ شخص هغه څوک دی، چې پر بل د سلام اچولو لومړيتوب وکړي).

مجاهد په پورته حديث کې په ذکر شوې قاعده التزام کوي، په هر څه کې ښه والی لټوي، له خپلو ورونو سره په ارامۍ، ادب، نزاکت او مهربانۍ معامله کوي، هغوی په يوه خبره او يا يو کار نه خوابدي کوي.

مجاهد د الله تعالی(ﷻ) بنده ګان د الله تعالی(ﷻ) لور ته راهنمايي کوي، د جهل له تيارو د حق رڼا ته د خلکو د را ايستلو لپاره جګړه کوي، څو د الله تعالی(ﷻ) رضا او د هغه ښښنه تر لاسه کړي، يو رښتينی مجاهد له الله تعالی(ﷻ) سره د شته څيزونو هيله کوي، نه د هغه څه چې له بندګانو سره دي.

[1] - سنن ابوداؤد



# پاکوالی

حضرت مصطفی(صل الله عليه وسلم) فرمايلي دي:

**﴿عَنْ أَبِي مَالِكٍ الأَشْعَرِيِّ ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الطُّهُورُ شَطْرُ الإِيمَانِ الخ﴾**[1]

ژباړه: (د ابو مالک الاشعري څخه روايت دی رسول الله(صل الله عليه وسلم)فرمايلي دي: چې پاکوالی د ايمان يوه برخه ده ).

مجاهد پاکوالی خوښوي او له همدې کبله د تل لپاره له خپل ځان نظافت ته ځانګړې پاملرنه کوي.

نبي مرتضی(صل الله عليه وسلم) فرمايي:

**﴿عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَشْرٌ مِنَ الْفِطْرَةِ قَصُّ الشَّارِبِ وَإِعْفَاءُ اللِّحْيَةِ وَالسِّوَاكُ وَاسْتِنْشَاقُ الْمَاءِ وَقَصُّ الأَظْفَارِ وَغَسْلُ الْبَرَاجِمِ وَنَتْفُ الإِبطِ وَحَلْقُ الْعَانَةِ وَانْتِقَاصُ الْمَاءِ قَالَ زَكَرِيَّاءُ قَالَ مُصْعَبٌ وَنَسِيتُ الْعَاشِرَةَ إِلَّا أَنْ تَكُونَ الْمَضْمَضَةَ﴾**[2]

ژباړه: ( د عايشه(t) څخه روايت دی رسول الله(صل الله عليه وسلم)فرمايلي دي: لس شيان له فطرت څخه دي، د بريتونو کمول، د ږيرې پرېښودل، مسواک

[1] - صحيح مسلم
[2] - صحيح مسلم

وهل، پوزه مینځل، نوکان کمول، د لاسونو بندونه مینځل، د تخرګونو وینبتان ایستل، د نامه لاندې وینبتان خریل او استنجاء کول، زکریا وایي مصعب ورته وویل چې لسم مې هېر شوی دی، خو دغه لسم به د خولې پرېمینځل (مضمضه) وي).

مجاهد پوهېږي چې د هغه شا او خوا هر څه، د هغه برې، ماتې، خوشحالۍ، خواشینۍ او....ټول د جهاد له لارې، نه جلا کېدونکي دي، ځکه چې د ژوند مستي، لېوالتیا او خوشحالي یې په جګړه کې ده. د مجاهد زده وي چې باید په یو مناسب وخت کې څه ډول ستراتیژي خپله او کاروي.

الله(ﷻ) فرمايي:

﴿فَلْيُقَاتِلْ فِي سَبِيلِ اللَّهِ الَّذِينَ يَشْرُونَ الْحَيَاةَ الدُّنْيَا بِالْآخِرَةِ وَمَنْ يُقَاتِلْ فِي سَبِيلِ اللَّهِ فَيُقْتَلْ أَوْ يَغْلِبْ فَسَوْفَ نُؤْتِيهِ أَجْرًا عَظِيمًا﴾[1]

ژباړه: (هغه کسان دې د الله په لار کې جګړه وکړي چې د دنيوي ژوند په بدل کې اخرت پېري او هر څوک چې د الله(ﷻ) په لار کې جګړه کې شهيد شي يا غالب شي، نو موږ به ورته ډېر ژر اجر ورکړو).

همدا راز الله(ﷻ) په خپل کتاب کې فرمايي:

﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا اسْتَعِينُوا بِالصَّبْرِ وَالصَّلَاةِ إِنَّ اللَّهَ مَعَ الصَّابِرِينَ، وَلَا تَقُولُوا لِمَنْ يُقْتَلُ فِي سَبِيلِ اللَّهِ أَمْوَاتٌ بَلْ أَحْيَاءٌ وَلَكِنْ لَا تَشْعُرُونَ، وَلَنَبْلُوَنَّكُمْ بِشَيْءٍ مِنَ الْخَوْفِ وَالْجُوعِ وَنَقْصٍ مِنَ الْأَمْوَالِ وَالْأَنْفُسِ وَالثَّمَرَاتِ وَبَشِّرِ الصَّابِرِينَ، الَّذِينَ إِذَا أَصَابَتْهُمْ مُصِيبَةٌ قَالُوا إِنَّا لِلَّهِ وَإِنَّا إِلَيْهِ رَاجِعُونَ، أُولَئِكَ عَلَيْهِمْ صَلَوَاتٌ مِنْ رَبِّهِمْ وَرَحْمَةٌ وَأُولَئِكَ هُمُ الْمُهْتَدُونَ﴾[2]

[1] - النساء: ٧٤

[2] - البقره: ١٥٣-١٥٧



ژباړه: (ای د ايمان خاوندانو! له الله(ﷻ) په صبر او لمانځه سره مرسته وغواړئ، بې شکه چې الله(ﷻ) له صبر کوونکو سره دی. او هغه چاته چې د الله(ﷻ) په لار کې ووژل شي مړه مه وايئ، بلکې دوی ژوندي دي، خو تاسې نه پوهيږئ. او موږ ازمايو تاسې په يوه شي، چې هغه عبارت دی، له وېرې، لوږې او له کموالي د مالونو، نفسونو او ميوو څخه او زېری ورکړه صبر کوونکو ته. صبر کوونکي هغه کسان دي چې کله ورته څه مصيبت ورسيږي، نو وايي بې شکه، موږ د الله(ﷻ) يو او بې شکه موږ الله(ﷻ) ته بيا ورتلونکي يو. په دغو کسانو رحمت دی له طرفه د رب د دوی او مهرباني ده او همدغه کسان سمه لار موندونکي دي).

الله(ﷻ) په خپل سپېڅلي کتاب کې يو بل ځای فرمايي:

﴿لَنْ يَضُرُّوكُمْ إِلَّا أَذًى وَإِنْ يُقَاتِلُوكُمْ يُوَلُّوكُمُ الْأَدْبَارَ ثُمَّ لَا يُنْصَرُونَ﴾[1]

ژباړه: (له سره به ضرر ونه رسوي تاسې ته "دغه فساق" مګر په ربړولو د ژبې او که جنګ وکړي دوی له تاسې سره، نو وبه ګرځوي دوی تاسې ته شاوې بيا به له دوی سره مرسته ونه کړای شي).

همدا راز سرور کاينات(صلی الله عليه وسلم) فرمايلي دي:

﴿عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ اللَّهَ قَالَ مَنْ عَادَى لِي وَلِيًّا فَقَدْ آذَنْتُهُ بِالْحَرْبِ وَمَا تَقَرَّبَ إِلَيَّ عَبْدِي بِشَيْءٍ أَحَبَّ إِلَيَّ مِمَّا افْتَرَضْتُ عَلَيْهِ وَمَا يَزَالُ عَبْدِي يَتَقَرَّبُ إِلَيَّ بِالنَّوَافِلِ حَتَّى أُحِبَّهُ فَإِذَا أَحْبَبْتُهُ كُنْتُ سَمْعَهُ الَّذِي يَسْمَعُ بِهِ وَبَصَرَهُ الَّذِي يُبْصِرُ بِهِ وَيَدَهُ الَّتِي يَبْطِشُ بِهَا وَرِجْلَهُ الَّتِي يَمْشِي بِهَا وَإِنْ سَأَلَنِي لَأُعْطِيَنَّهُ وَلَئِنْ اسْتَعَاذَنِي لَأُعِيذَنَّهُ وَمَا تَرَدَّدْتُ عَنْ

[1] - ال عمران: ١١١

**شَيْءٍ أَنَا فَاعِلُهُ تَرَدُّدِي عَنْ نَفْسِ الْمُؤْمِنِ يَكْرَهُ الْمَوْتَ وَأَنَا أَكْرَهُ مَسَاءَتَهُ﴾**[1]
ژباړه: (له ابو هريرة(رضی الله عنه) څخه روايت دی رسول الله(صل الله عليه وسلم)وفرمايل: چې الله تعالی(ﷻ) فرمايلي دي: هغه څوک چې زما له دوست سره دښمني کوي د هغه سره د جنګ اعلان کوم او ماته د بنده د نژدې کېدلو لپاره د يو عمل کولو تر ټولو خوښ هغه څه اداء کول دي، چې ما ورباندې فرض کړي دي او يو بنده همېشه ماته د نوافلو په اداء کولو ځان نژدې کوي، تر دې چې زه ورسره مينه پيدا کړم، کله چې ورسره زه دوستي کوم، نو زه د هغه غوږونه يم چې اورېدل پرې کوي او سترګې يې يم چې ليدل پرې کوي او لاس يې يم چې نيول پرې کوي او پښه يې يم چې تلل پرې کوي او که له ما څه وغواړي ورکوم يې او که په ماباندې له څه شي پناه وغواړي نو پناه ورکوم ....)(٢)

**حسبنا الله ونعم الوكيل**

**الله أكبر، الأمير أبو إدريس عبد الله شامل بساييف**

1 -صحيح البخاري
2 -د پاکوالي تر عنوان لاندې د وروستيو درې ايتونو او يو حديث شريف د ذکر کولو هدف دا دی چې ليکوال لوستونکي مجاهد ته د روحي پاکوالي او سپيڅلتيا لارښوونه کوي چې همدا پاکوالی به يې د الله په وړاندې بريالیتوب ورپه برخه کړي.